# شهامت

امریکا ته به ! خپلې بدې ارادې او له فریبونو ډکې هلې ځلې بری ورنکړي !

اتم کال څلورمه ګڼه، پرلپسې۴۸ مه، صفرالظفر ۱۴۳۶هق، نومبر ۲۰۱۴ م

دشهید ملا روزي خان "عاکف" ژوند او کارنامو ته کتنه

حملات اخیر علیه دشمنان، نماد قهر ملت علیه اشغال و کشور فروشان است؟



مغرورانه یرغل اوعبرتناک شکست

یمن د تجزیې یقیني خطر

وروستیو بریدونو څه په ډاګه کړل

د پوهنې د کمیسیون له لوی رئیس سره مرکه

دامریکا د زوال وړاندوینه!

پر مسجدونو باندې د وروستیو بریدونو عاملین څوک دي؟

جنګ او تباهي ته څوک لمن وهي؟

شهامت

علمي، کلتوري او اسلامي مجله

اتم کال څلورمه ګڼه، پرلپسې۴۸ مه، صفرالظفر ۱۴۳۶هق، نومبر ۲۰۱۴ م

## لړلیک



**دامتیاز خاوند :**

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

---

**مسـؤل مدیر :**

ابو ظهیر

---

**کتـنـپـلاوی :**

شاهد "حقاني" لطیف عزم
حسن "علوي" بلال "وحید"
نعیم "صافی" عابد مجاهد
قاري حبیب

---

**بـیـه :**

یوه ګڼه ۲۰ افغانۍ او ۳۰
کلدارې په پاکستان کې

---

**تخنیکي چارې :**

تخنیکی څانګه

---



### یـادونـه

شهامت له سرمقالې پر ته دنورو لیکنو
مسؤلیت په غاړه نه اخلي

ادرس : کابل کارته پروان عقب سینمای بهارستان برېښنالیک : Sham.shahamat@yahoo.com




بسم الله الرحمن الرحیم

# امریکا ته به ! خپلې بدې ارادې او له فریبونو ډکې هلې ځلې برې ورنکړي !

په مخامخ اوعلني جګړه کې له شکست اوناکامه کېدو وروسته ، مغرورغلیم هڅه کوي څو د تشریفاتي اونمایشي ډوله غونډو په جوړولو، بیړنیو سفرونو اودوحشیانه جګړییز روځ دپراخولو په لافو شافو ځان دجګړې دډګر ورونکی اوګټونکی وښیي ! ! په دا وروستیوکې داوباما لخوا د صلیبي جګړې دتمدیدولو په اړه پټ فرمان ! لندن کې افغانستان سره دمرستو په نامه دیرغلګروهېوادونو دمشرانو بیا یوځای کېدهٔ او افغانستان ته دامریکا ددفاع وزیر(چاک هیګل) تازه نااعلان شوی بیړنی سفر دشکست خوړلې دښمن په سینه کې قوي روحي ستوماني او عمیق سیاسي اضطراب په ډاګه کوي.

دامریکا په مشری دیرغلګرو لخوا روانې غورځې پرځې اومنډې ترړې ښیي ، چې دافغان هېواد داستقلاځ غصبوونکي او دلکونو انسانانو قاتلین لا تراوسه پخپلوکړو جنایتونو پښېمان او د ناروا ظلمونو څخه توبه ګار نه دي ! بلکې پرهغو له ویاړسربیره په زیاته سپین سترګۍ اودفریب څخه په ډکه لهجه لګیا دي، افغانستان کې د خپل مردود اشغاځ د لا پایښت خوب ربښتیاکوځ غواړي.

دکتونکوله نظره ! دجګړې په ډګر کې دخجالت اورسوایي وروسته اوس د فریب څخه ډکه دیپلوماسۍ اوتزویري سیاسي فعالیتونه پرمخ وړي، څو دافغانستان دمهم اوستراتیژک جغرافیوي استقامت څخه په ناوړه ګټه اخیستنه ځان تر شوموا استعماري هدفونو ورسوي. دافغانستان په نوم دپیسو او مرستو دبیا راټولولو تازه کمپاین موخه هم داده څو د نړۍ دبډای هېوادونو څخه دملیاردونو ډالرو په ترلاسه کولو خپلو جعل کاریو او تزویرونو ته نورهم رشد اوپراختیا ورکړي

حقیقت دادی چې دصلیبي تاړاک نوي دسیسې اوتوطئې به افغانستان ته دښېرازۍ په ځای د افغانستان دبربادۍ اوبدمرغۍ ناورینونه له ځان سره راوړي ،هم دافغانستان د جغرافیوي مهم استقامت داشغاځ نه په ګټه خپل پوځي حضور نور پیاوړی او غځوځ په پام کې لري.

بل دغه روان ټوځ حرکتونه دافغانستان په ګډون دټولې سیمې دراتلونکي لپاره هم دقوي ګواښ په معنی دي، په خاصه توګه دسیمې هېوادونو ملي استقلاځ به هم دخطرونو اوګواښونو سره مواجه کړي ! ښکاره ده افغانستان کې دامریکا د پوځي موجودیت اصلي غرض اوغایه ټوله سیمه دامریکا یې راج تر پوښښ لاندې راوستل دي ! که دامریکا ددې عزایمو او جګړه ییز روځ پراخولو مخنیوی لږ کې ګاونډیان خپل مسولیتونه درک نکړي ، عواقب به یې دټولو لپاره ځورونکي اوبدمرغه پایلې ولري ! نوپه هره بیه چې شوني وي باید امریکا دیته اړیستل چې هغه افغانستان کې دخپل ظالمانه اشغاځ اودسیمې پرضد دبد نیت نه په شاشي !

علاوه پر دې تېره دیارلس کلنه دوره خپله دامریکا په مخکې ده، چې دلته ددوئ ټولې استکباري هڅې د ناکامۍ اورسوایي پرته بله نتیجه نلري، داسمه ده ، دوئ دپرمختللې ټیکنالوجی پر ځواکافغانستان اشغاځ کړی ، خو واقعیتونه یې تغیر اوبدځ نکړای شوځ ، پوره کلي اوښارونه یې کنډواله کړځ ، بې شمېره خلک یې شهیدان ، ټپیان اوبې کوره کړځ ، خوجهادي مسیر اودمقاومت بهیر یې ټکنی نکړای شو، نوله شک پرته امریکا دخپل ټوځ پرمختللي ځواکد کارولو سره سره روانه جګړه بایللي، که دځان دبري لپاره له ګردې نړۍ پوځونه راولي بیا به یې هم دبري څرک ترسترګو نشي.

نودجګړې دپراخولو اوپه منطقه کې دخپلو موهومه ګټو دلټون په ځای غوره داده چې امریکا دافغان ولس غوښتنو او ارادو ته غاړه کېږدي اوخپل ناروا اشغاځ سملاسي پای ته ورسوي، افغانستان دافغان ولس خوښې اوپرېکړې ته پرېږدي ، تاریخ په دې خبره شاهد دی چې افغانانو کله هم پخپل هېواد بهرني تیری ندی زغملی، دهر تیري کوونکي سره په خورا کلکه اومیړانه جنګیدلي او نه دیرغلکوونکو ارادو ته تسلیم شوي، دامریکا په مشری دڅه کم پنځوس هېوادونو دتیري په وړاندې دافغان ولس د میړانو او قهرمانیو ډکې حماسې یې ژوندی مثاځ دی، چې پخپلو سترو قربانیو اوفداکاریویې ټوله نړۍ حیرانه کړیده ،دامریکا او ناټو ځواکونو پرضد وروستي جهادي بریدونه ټولو ته داپیغام لري، چې ددوئ پوځي اشغاځ پرضد په روان جهاد کې دوخت په تېریدو تیزې راځي، چې دیته په کتو که دوئ دافغانستان اشغاځ ژرپای ته ونه رسوي ، ددې څخه نورو قوي تندریزو بریدونو ته انتظار وباسي چې په ترڅ کې به یې ددوئ دبې شمېره عسکرو ککرۍ په وینو کې ورغړیږي !

# پر مسجدونو باندې

## د ورروستیو بریدونو عاملین څوک دي ؟!!

شاهد(غزنیوال)

د روان کال د لیندۍ د میاشتې په (۳) مه ورځ امریکایي ولسمشر بارک اوباما په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو پوځي ماموریت یوکال نورهم تمدید او د کابل اداري ولسي جرګې د کابل واشنګټن ترمنځ امنیتي تړون منظور کړ.

دا دواړه هڅې په حقیقت کې د افغان ولس د ارادي پرخلاف داشغالګرو او دهغوی د ملاتړو یو داسې اقدام وه چې دیوه سخت ولسي غبرګون توقع ترې کیدله.

هماغه وه چې د امریکایانو له دغه اقدام سره هم مهاله د پکتیکا ولایت د یحیی خیلو ولسوالۍ په یوه سپورتي لوبغالي کې خونړۍ چاودنه رامنځته شوه چې د مړو او ژوبل شویو شمیرې تر سلو تنو واوښت.

که څه هم چې په یاده چاودنه کې د ولسي وګړو ترڅنګ یو شمیر اربکیان او دولتي کسان هم ووژل شول خو په مجموع کې دهغې ډیر

قربانیان ولسي وګړي ول چې نه باید دا ډول ولسي تجمعات د پوځي بریدونو هدف وګرځي

د یحیی خیلو د برید په تعقیب د لیندۍ دمیاشتې په (۷) مه د ننګرهار ولایت د خوږیانو ولسوالۍ په جامع مسجد کې د جمعې د لمانځه د اداء کولو پرمهال د لمونځ

کوونکو په منځ کې خونړۍ چاودنه وشوه چې په لسګونو لمونځ کوونکي یې ژوبل کړل.

تر هغه درې ورځې وروسته د لیندۍ د میاشتې په لسمه نیټه د بغلان ولایت په برکه ولسوالۍ کې دجنازې د مراسمو پرمهال چاودنه وشوه چې خواوشا (۳۰) په کې مړه او ژوبل شول.

د ولسي جرګې لخوا د کابل واشنګټن ترمنځ امنیتي تړون تصویبولو سره هم مهال په ولسي تجمعاتو په تیره مقدسه اماکنو او مذهبي مراسمو باندې دا ډول هدفي بریدونه بې له شکه چې د نړیوالو استخباراتو شبکو په لاس جوړ شوي هغه سازشي پلانونه دي چې د زیاتو

ولسي افغانانو په وژل کیدو سره نور هم غواړي په افغانستان کې د خپل نامشروع اشغال د غزولو لپاره مبرر پیدا کړي.

دا سلام په سپیڅلي دین کې د بیګناه انسان وژنه له شرک نه وروسته د الله تعالی په نزد تر ټولو لویه ګنه ده ، پر هغه سربیره مساجد او مذهبي مراسم د اسلامي ارشاداتو له مخې خپل حرمت لري، که چیري دښمن هم مسجد او یا مذهبي مراسمو ته د ګډون لپاره راشي نو د مسجد او مذهبي مراسمو د مذهبي حرمت اوهمدا راز هلته د ډیرو رایوځای شویو مسلمانانو د خوندیتوب په غرض باید پر دښمن برید ونه کړای شي.

داچې له یوې خوا په اسلام کې د بیګناه انسان قتل حرام دی ،بل ځای د مساجدو او مذهبي مراسمو دحرمت خبره ده ، نو هیڅ کله هیڅ مسلمان هم په یوه وخت کې دوې کبیرې ( دمسلمان قتل او مسجد بې احترامي) نه کوي ، مجاهدین چې ځان دالله تعالی داحکامو نافذوونکي او دشعائرالله مدافعین بولي هغوی به څرنګه د جهاد په نوم محرمات قطعي تر سره کوي.

امریکایان او د هغوي بې ضمیره ملاتړي په دې خبره پوره باورلري چې افغانان نور په خپل هیواد کې د دوی ناولي شتون نه مني ؛ لهذا د خپلو یوشمیر اجرتي ګمارل شویو په وسیله غواړي د ولسي افغانانو په مذهبي ، اجتماعي او تفریحي مراسمو باندې داډول بریدونه ترسره کړي تر څو هم نړیوالو او هم خپله افغانانو ته داوښیي چې که بهرنیان په افغانستان کې نه وي نو نه به دافغانانو مساجد خوندي وي نه به دهغوی سپورتي او تفریحي لوبغالی مصؤن وي او نه به یې دغم اوښادي مراسم محفوظ وي.

د اشغال په تیره ۱۳ کلنه دوره کې عامو افغانانو د اشغالګرو امریکایانو او د هغوي د مفسدو مزدورانو ټول

کړه وړه لیدلي چې له امله یې عامه ذهنیت نن ټول د هغوي پر خلاف جوړشوی ، اوس دښمن کوښښ کوي خپل جرائم د دغه ډول وحشیانه اعمالو په ترسره کولو سره پټ کړي.

مجاهدین د دغوجرائمو په مخنیوي کې څه باید وکړي؟

داچې یرغلګر دښمن له خپل ټول پوځي او تخنیکي برلاسي سره د مجاهدینو په مقابل کې شکست خوړلی ، پوځي پلانونه او تګلارې یې ناکامې شوې اوس غواړي له غیر مستقیمې لارې دخپل ځان په ګټه د عامه ذهنیت جوړلو کوښښ کوي.

غیر مستقیمه لاره همدا لاره ده چې یو شمیر اجرتي مزدوران پیدا او دهغوی په وسیله د ولسي خلګو په منځ او یاهم د عام المنفعه تأسیساتو پرخلاف بریدونه ترسره او بیا هغه مجاهدینو ته منسوب کړي.

امریکایانو ته دافغانانو وژل لویه لاسته راوړنه ده ، دغه افغانان که عادي ولسي افغانان وي، که دولتي اجیران وي او که مجاهدین وي، د هغوي اصلي هدف د افغانانو وژنه ده ، په تیره هغه وژنه چې خپله د افغانانو په لاس وي ؛ ځکه په دغې وژنې سره هم افغانان د نوروافغانانو په وسیله وژل کیږي او هم له دې لارې دهغوي ترمنځ نورې فتنې او تفرقې را ولاړیږي.

نو مجاهدینو ورونوته په کار ده چې د ماتې خوړلې دښمن دغې خطرناکې فتنې ته ډیر متوجه وي.

هغوی باید خپل ټول پوځي پلانونه په داسې ډول عیارکړي چې په هیڅ ډول ولسي وګړي ورکې متضرر نشي ؛ ځکه د ولسي خلګو د ځان، مال اوعامه شتمنیو خوندیتوب د جهاد او مجاهدینو اساسي هدف او مسؤلیت دی.

دوهم دا چې کوم ځای تر خپلې ولکې لاندې سيمو کې په مسجدونو، جنازو او ياهم په نورو ټولنيزو مراسمو، لوبو او د ښادي په غونډو کې چاودنه وشي د هغه په غبرګون کې نه يواځې دا چې په هغه کې خپل لاس لـرل رد کـړي، بلکې سمدستي د هغه په اړه بايد جدي تحقيقات وکړي، ترڅو د پيښې اصلي عاملين پيدا او مجازات کړي.



کوم کسان چې دمجاهدينو په ليکو کې له پوځي عملياتو پرته د ولسي خلکو په ځورولو لاس پوري کوي هغوی بايد تشخيص او په اړه يې جدي پلټنې وشي، که احيانا هغوی دځينو شخصي غرضونو په اساس ولسي خلک ځوروي هغوی تنبيه او د جرم دتکرار په صورت کې مجازات شي او که چيري خدای مکړه د دښمن اجرتي اشخاص دمجاهدينو په ليکو کې ځای پرځای شوي وي او د جهاد او مجاهدينو د بدنامولو په خاطر ولسي خلک ځوروي هغوي بايد تفکيک او د شرعي محاکمو له پريکړې سره سم مناسبه جزاء ورکړي.

دريم مجاهدين بايد په هيڅ صورت د هغو ټول ګټو تأسيساتو په تخريب لاس پوري نه کړي کوم چې د دښمن ترڅنګ عام خلکو ورڅخه ډيره استفاده کوي، لکه د لويو لارو پلونه، صحي کلنيکونه، ښوونځي او نور غيرپوځي دولتي تأسيسات، ځکه د غه تأسيسات که ديوه آني وخت لپاره د دښمن لخوا کارول کيږي خو دهغه ترڅنګ دټولې سيمې د خلکو دائمي اړتياهم وربانديې پوره وي، نو دعامه مصلحت په اساس که څه هم چې په ځينو حالاتو کې له هغه څخه دښمن استفاده کوي لکه دلويو لارو پلونو خو مجاهدين بايد دهغو له تخريب او نړولو ځان وساتي، ځکه تخريب يې له يوې خوا د خلکو دمتضرر کيدلو لامل ګرځي او له بلې خوا دښمن ته د مجاهدينو پرخلاف د ناوړه تبلغاتو زمينه برابروي.

اوس مهال چې د دښمن د اشغال وروستۍ ورځې دي بايد مجاهدين ورونه تر اجرايي فعاليتونو زيات پروقايوي کړنو تر کيز وکړي، دولسي خلکو امنيت تأمينول، دهغوی لپاره د امکان په صورت کې د هغوی لپاره د ښوونې اوروزنې، روغتيا او نورو رفاهي خدمتونه برابر کړي.

په پوځي ډګرکې د دښمن د افرادو تر وژلو زيات د هغوی په قانع کولو کوښښ وکړي، ځکه د داخلي افغانانو په تيره د غولول شوي يو اوياهم تطميع شويو اربکيانو تر وژلو د دښمن له صف څخه د هغوی راجلاکول د دښمن لپاره لويه ضربه ده.

# حملات اخیر علیه دشمنان، نماد قهر ملت علیه اشغال و کشور فروشان است؟

ذبیح الله مجاهد

بدون شک مجاهدین به نصرت اللهی درسیزده سال گذشته ابرقدرت بزرگ جهانی را که ادعای فرعونیت را داشت، به زانو زد و هیبت اش را کوبید.

واقعا امارت اسلامی افغانستان با رهبری مدبرانه و دلیرانه خود، توانست با تمام توطئه ها، دسیسه ها، حملات هوایی و زمینی، فعالیت شوم دستگاهای چندین استخبارات کشور های مقتدر و اهریمن صفتان داخلی پنجه نرم کند والحمدلله آنها را با یأس او شرمساری مواجه نماید.

اگر بعضی ها روی کینه توزیهای شخصی و دشمنی که با دین و دین گرایان دارند، جرئت نه میتوانند که به چنین حقیقت اعتراف نمایند، ولی فردا تاریخ که کدام مشکلی عقیدوی و مفکوری با دین و اسلام گرایان نخواهد داشت، این واقعیت راثبت خواهد نمود، تاریخ افغانستا با پهنای و درازای که دارد، چنین مردم دلیر و شجاعتمند را پشت سر نه گذاشته بود.

بلی تاریخ ما همیشه مملو از اشخاص دلیر، شجاع، مسلمان و حماسه آفرینان بوده است، ولی به منوالی که این ملت با ۴۹ کشور مقتدر جهان به یک باره گی مواجه گردد، و تکنالوژي معاصر هم بادقت و معیار بلند علیه آن قرار گیرد، هرگز قبلا چنین مثالش را نداشتیم پس صد آفرین به مجاهدان معاصر می گوییم.

بعد از آن که اداره کابل به سر گردگی اشرف غنی، دوستم، و یک تعداد عناصر جنگ سالار و دالر بگیرهای شر و فساد، همچنان شماری از کمونستهای سابق که در فروش کشور تجربه خوب داشتند، پیمان با امریکایهارا امضاء کرد، و افغانستان از طرف خود به فروش رساند، مجاهدین هم درک کردند که باید همه پلانهای نظامی خود را بازنگری کرده و به نمایندگی از ملت خود علیه اشغالگران ومزدوان داخلی آنها حملات کوبنده ء بیشتری را زیر دست گیرند.

در تقریبا یک ماه گذشته اجرای حملات به تأسیسات مهم و مصئون دشمن، قطار ها و مراکز نظامی آنها هسته دشمن را به لرزه در آورد و وارخطای فوق العاده یی را در صفوف دشمن ایجاد نمود.

این حملات که نشانگر نیرومندی مجاهدین وضعف کلی دشمن است، اراده مردم دلیر و کفر ستیز افغان را در برابر اشغال، سیکولار ها و مزدوران بیگانه، نمایان میسازد و بیانگر قهر ملت، علیه دشمن زبون می باشد.

ـ حملات بسیار به دقت طراحی شده و به اهداف مهم اصابت کرده، درکل اجرای هر نوع حمله در شهر کابل که بیشتر از صد هزار نیرو

نظامی اعم از خارجی وداخلی دشمن مصروف امنیت گیری است، خود دست آورد بزرگ شمرده میشود.

ـ حمله در داخل ساحات سبز دشمن که پشه پر زده نه میتواند، بدون اینکه مردانگی و هوشیاری مجاهدین را ثابت سازد چیزی دیگر نیست.

ـ حمله بر ساختمان استخبارات (IRD) در وزیر اکبرخان کابل و ادامه جنگ تا ۵ ساعت توانایی فوق العاده مجاهدین راآشکار ساخت

ـ برپا نمودن حمله در درونډ قوماندانی امنیه کابل کې بخاطر امنیت آوردن (!) به دیگران ساخته شده، خود دلالت بر آن دارد که مجاهدین در ردهای درونی اداره کابل چقدر دست بالایی دارند؟

ـ اجرای حملات دو روزه در میدان هوای شوراب هلمند، که در عین زمان قول اردو هلمند هم نامیده شده، و کشتن بیشتر از ۳۰۰ نظامی خارجی وداخلی، حریق نمودن صدها عراده وسائط نظامی و سایر دست آورد ها، بدون اینکه مجاهدین را به سطح جهانی قهرمان معرفی نماید چیزی دیگر مناسب نیست برش بگوییم.

در عموم حملات پی هم بدون شک که ابراز کننده قهرملت غیور افغان وعکس العملی به جا رادمردان تاریخ در برابر امضاء پیمان ننگین با امریکا و سائر کفار اشغالگر است، ما باور داریم که تا ختم اشغال و به جزا رساندن مزدوران حلقه به گوشان ادامه خواهد داشت.

کارشناسان بدین باور اند که چون امریکا در افغانستان برخلاف وعدهای قبلی خود، میخواهد اشغال افغانستان را به رازا کشد، وحشت های خود را علیه این ملت تداوم بخشد، اسلحهء نو ساز خود را هنوز هم در برابر فرزندان و خانمان افغان به آزمایش گیرد، پس افغانها هم روی مکلفیت دینی و میهنی، روی احساس و ضمیر هوشیار خود نه خواهد گذاشتند امریکایها و غلامان روزی آرام داشته باشند.

در بانظر داشت امضاء پیمان نامشروع و اشارات تداوم اشغال از طرف امریکا، ما گفته میتوانیم که آنها به حملات چندین برابر نیرومندتر مجاهدین مواجه خواهد شدند وبعید نیست که همه تأسیسات دیپلوماتیک و سیاسی مرتبط به کشورهای اشغالگر نیز، همچو مراکز نظامی آنها مورد حملات و کوبیدن قرار گیرد و در گرداب قهر ملت افغان کمپل اشغال از کشور در اسرع زمان چیده شود. ان شاءالله

# مرعوب لښکر

مولوي عرفان الله عرفاني

هېبښ ولاړ دی دطاغوت لښکر مرعوب دی
ګوري بیاشوحق غالب کفر مغلوب دی

دباطل توري کلاوې کنډوالې شوې
هر مفسد سر کش په داربانديې مصلوب دی

وَجاهِدُوافِی اللهِ حَقّ جِهادِه
داآیت یې په تندي بانديې مکتوب دی

پرېښتې یې په وزرو له پاسه ولي
شیطان ځکه نن په سر وویښو کې ډوب دی

دجهادغږ له مشرقه ترمغرب دی
خوځښت کړی بیا شمال اوهم جنوب دی

دیوسف دخلاصون زیری پرې چاکړی
بیناشوی له ړندوستر ګویعقوب دی

ددنیامال اودولت موهدف نه دی
دالله دین موکټل بس خاص مطلوب دی

د کاروان منځ کې روان دی غزل وایي
عرفاني توره په لاس ناست په مرکوب دی

# امریکا جګړه ییز رول ولې

# پراځوي؟

بشیر

د روان ۱۳۹۳ل کال د لیندۍ په ۲مه، مشهورې،امریکایي ورځپاڼې( نیویارک ټایمز) انکشاف وکړ، چې دامریکا ولسمشر اوباما په یو پټ فرمان کې پنټاګان ته حکم کړی چې د۲۰۱۴ز کال وروسته، افغانستان کې دامریکایي ځواکونو جګړه ییز رول پراخ او وغځوي!!

داوباما لخوا دامریکایي ځواکونو دجګړه ییز رول پراخولو د نوي فرمان څخه وړاندې، اوباما دټولې نړۍ په وړاندې ژمنه کړي وه، چې امریکا به ژر، افغانستان کې خپل جنګي ماموریت پای ته ورسوي! او د۲۰۱۴ز کال، د مۍ په میاشت کې یې بیا دوهم وار اعلان وکړ: چې د۲۰۱۴ کال ددسمبر میاشتې وروسته په افغانستان کې دامریکا هېڅ یو پوځي په جنګ کې ونډه ونلري...

دسیاسي کتونکو په لر لید: د اوباما دا دوه مخېتوب اوله کړي ژمنې تیبنته، په حقیقت کې دامریکا دجعل کاري پالیسۍ ښکارندویه ده، چې همیش په دروغجنو پلمو او وعدو خلک تیرباسي، له خپلې وعدېنه داوباما په شاتګ دهمدغه امریکایي ذهنیت اوسیاست عکاس دی! چې دامریکایي چارواکو له ادنی نیولي ترولسمشره دیوه وعده هم حتمي او رښتینې نده.

په مۍ میاشت کې د اوباماله دې اعلانه «چې ۲۰۱۴ ددسمبر وروسته هیڅ یو امریکایې پوځي په جنګ کې برخه ونلري» موخه داوه، چې هغه مهال دروانې امنیتي موافقې په اړه یې غوښتل د افغانانو عامه ذهنیتونه یوڅه نرم اوقانع شي! او داسي وښیي چې امریکا افغانستان کې دایمي پوځي شتون ته لیواله نده! که وای، خپل جنګي ماموریت یې کله پای ته رساوه؟واقعا ډیری افغانانو وفهموله هم داسې، چې امریکا نور جنګ پای ته رسوي، اوله افغانستانه نن دی که سبا پښې وباسي!

خوشنګه چې دسپتمبر په ۲۹مه، ګوډاګي ولسمشر اشرف غني لوړه وکړه او په سباته هغه ور سره دامنیتي موافقې تور سند لاسلیک او امریکا ته یې دافغانستان دخرڅلاو قباله ور کړه!! دامریکا پټه اراده ښکاره شوه، دي سره جوخت یې خپله رویه تغیر کړه، امریکا حس کړه، چې په سیمه کې یې دخپل نفوذشیندلو داسې اعظمي پلمه اوچانس په لاس ورغلی،چې له مودو ،مودویې راهیسې یې په لټه کې وه.

هغه ګردې انديښنې هم پر ځای او رښتيا وختلې، کومې چې دلاسليک دمخه دنظر اوپوهې خاوندانو احساسولې او افغانانو ته يې له امريکا سره په دغه ډول اړيکو جوړولو کې داحتياط توصيه کوله.

خو تر اوسه بيا هم داوباما ددې بدمرغه پلان ټول جزيات اوتفصيلات مرموز اوپټ پاتې دي، بيرون ته ندي ښکاره شوي، خو شايد راتلونکي کې د دينه هم سخت اوهيبنوونکي انکشافات ظهور ومومي، "نيويارک ټايمزدا هم ليکلي: چې اشرف غني له امريکانه په کلکه غوښتنه کړې، چې د ۲۰۱۴ کال وروسته دې امريکايي ځواکونه افغانستان کې شپنيو عملياتو اوبريدونو ته دوام ور کړي! داشرف غني د غوښتنې په پام کې نيولو سره اوباما نوې پريکړه وکړه!




او ښکاره ده چې اشرف غنی دامريکايانو په خاصو غلامانو کې ځای لري، هغه دزړه اوفکر دواړو له پلوه دامريکايانو دمزاج اوطبيعت سړی دی، هغه ډېر لږ افغان اوډېر امريکايي دی! او غواړي غربي کلتور اوايډيا دلته له خپلو ټولو ځانګړ تياوو اوښاخونو وده وکړي، د کرزي په نسبت دی دامريکا د ګټو خونديتابه ته زيات ژمن او وفادار دی.

البته غني په دې زيات انديښمن او ور خطاء دی، چې هسې نه امريکايانو ته دوفادارۍ په امتحان کې له نورو پاتې رانشم؟ چې بيا به رانه لکه دکرزي چې مخ بله غاړه تاو کړ، مانه به يې هم په بله وګرځوي! اوخبر دی چې دامريکايانو روزلې اردو دطالب په وړاندې دټينګښت نه! نو ديته اړ دی چې پخپله شرمنده دوره کې د امريکااوناټو په ګډ پوځي ملاتړ ټينګار کوي.

امريکايانو يې دبزدلانه روحيې نه دا ګټه پورته کړه، چې ددجګړه ييز رول دتمديد په صورت ور ته هم هغه شرايط کيښودل، کوم چې وړاندې کرزي نه وو منلي، ليکن دکرزي سيکه دهمغو دنه منلو له امله له چلښته وغورځيده، دکرزي انجام ته په پام دامريکا ټول شرطونه اومنل، دامريکايانو په شرطونو کې يو دا و که مونږ پاتې کيږو خامخا به شپني عمليات او تلاشي کوو! دخلکو کورونو ته به ننوزو! خلک به پخپلو محبسونو کې بنديانوو! ته به خوله نه چول کوي! د دې وروسته دپنټاګان او سي ای اې په کډه غوښتنه اوباما دعملياتو دتمديد ولوحکم ور کړ.

يونظر دادی، چې اصلاً امريکايي چارواکي دخپل ګوډاګي رژيم په پوځي وړ تياوو باور اوډاډنلري، ور ته معلومه ده چې دمزدور

رژیم عسکري قطعات دطالبانو دبریدونو په وړاندې د تم کیدو حوصله نلري! هغوئ سره اندیښنه شته چې هسې نه دلته هم هغه کیسه تکرار شي، کومه په عراق کې وشوه! چې دعراق دنیمایې زیاته خاوره دامریکا مخالفو وسلوالو لاس ته ورغله! او امریکایانو ته داهم څرګنده ده، چې دافغانستان اسلامي امارت تر رهبرۍ لاندې مجاهدین د هیواد په ټولو ولایتونو،ولسوالیو او سیمو کې پراخ نفوذ لري،هغوئ په اسانه کولی شي چې دامریکا په مټو ولاړ رژیم راوپرځوي،په دې سره حتمي ده چې له امله یې دامریکانړیوال موقف ته په نړۍ کې دروند زیان ورسي.

دسیاسي څیړونکو یوه ډله په دې اند ده، چې امریکا افغانستان کې جګړه ییز رول ددې لپاره غواړي پراخ کړي، هغه ننګونې او چیلنجونه چې هغه ور سره مخ دی، په کلکه مبارزه وکړي، لکه د اوکراین اوخلیج کشمکش چې امریکا یې ښکېل ده، ډارلري، که له افغانستانه ووځي، امریکایې ضد عناصر و مورالونه به لوړ شي په خاصه توګه اوکراین اوخلیج کې مخالف جنګیالوحوصلې لوړې شي ،په افغانستان کې دعملیاتو پراخولو پریکړې یو لامل دا هم دی، چې امریکا اندیښنه لري ، هسې نه افغانستان کې دعملیاتو پای ، اوکراین اوخلیج کې دامریکا په سیاست او ګټو منفي تاثیر ډېرنکړي! ولې دا دواړه سیمې ستراتیژک اهمیت له پلوه امریکا لپاره حیاتي ارزښت لري، ددې لپاره امریکایان غواړي څو افغانستان کې ځان ته داړو پوزه جوړوي مقاومت وکړي،په ضمن کې دافغانستان په ګاونډیو هیوادونو د فشار اچوني د ډیپلوماسې نه په کار اخستلوله هغوئ نه کومک اوملاتړ غواړي.

دویمه ډله څېړونکي وایي: داوباما دنوې پرېکړې هدف چین دی، امریکا غواړي دافغانستان له حساس جغرافیوي موقعیت نه په ناوړه ګټه په چین فشار ډېر کړي،څوچین په نړیواله ډګر کې امریکا سره دسیالۍ ډغره ونه وهي اوخپل سیاسي او اقتصادي نفوذ محدود کړي! ددې لپاره افغانستان کې ورته پوځي موجودیت اهمیت لري اوله دې ځایه چین ګواښل غواړي!

چین ګواښل امریکاته خورا اهمیت لري، د ځارنې لپاره یې ځانګړې شبکه ( ستراتیژکو اړیکود ځار شبکه) جوړه کړیده، په هغه کې یې سیاسیون، اقتصادپوهان او دسي ای اي جاسوسان ګومارلي، څو دچین وضعیت، له بېلا بیلو اړخونو څخه و ځاري څو دکمزور تیاپه اړه یې منظم پلانونه تنظیم کړي،نو افغانستان کې دجګړه ییز رول د پراخولونه داوباما هدف دادی چې له نیږدې دچین دوامدار ځار اومراقبت وکړي، ځکه په راتلونکي کې چین په اقتصادي اوسیاسي دواړو ډګرونو کې دامریکا دیو قوي سیال په حیث د ځان راښکاره کولو تکل لري، ، دوروستنیو څېړنوارقام جوتوي، چې په اقتصادي ډګر کې چین مخ په تیزۍ وړاندې روان دی، دملګرو ملتونو د رسمي ۱۹۲ غړو هیوادونو له منځه، له پنځو هیوادونوپر ته، له ۱۲۹ هیوادونو، دملي ګټو نه دچین بانګي پانګه زیاته ښودل کیږي، هم دار از دنړۍ په ۵۰ نړیوالو بانګونو کې د چین لس بانګونه! او د امریکا ۶ راځي، هم په نړۍ کې تر ټولو ستر نړیوال بانګ دچین دصنعت او سوداګرۍ بانګ دی!! دچین دغه حیرانوونکی پرمختګ دامریکا لپاره دزغملوندی، افغانستان کې دجګړه ییز ماموریت پراخولو یوه موخه په چین فشار ډیر رول دي، څو په راتلونکي کې هغه امریکا چیلنج نکړي.

د شک پر ته دامریکا په دې پریکړه به، افغانستان کې نا امني اوبې ثباتي زیاته شي، خو کمه نه ، دامریکایانو لخوا د شپنیو عملیاتو پیل به هم ډېرې بدمرغۍ اوناخوالې پیښې کړي، باید افغانان دامریکایانو دبدو ارادو په وړاندې بیدار اووسي او اجازه ورنکړي چې ادلته هغه خپلو شومو اغراضو ته دپایښت ښنلو بد و عزایمو ته ورسي.



# وروستيو بريدو څه په ډاګه کړل !!

(شاهد)

دکابل –امريکادنا قبت انديشو واکمنو ترمنځ دبدنام امنيتي سندپه نوم دهيواد پلورنې فرمايشي تړون دلاسليک اوهمهالـه دغرب مشربه (اشرف غني) اودګلم جم مليشو دزاړه خونکار قوماندان او کمونسټ جنرال (دوستم) ارګ ته له ننوتلو وروسته،چې هيواداو ولس يې ديوه ناځرګند برخليک سره لاس وګريبان کړي، دادی دحدس او وړاندې سره سم پرخارجي او داخلي وينه څښونکيو مؤتلفو عسکرو دهيواد دځمکې ارته کره تنګه شوي اوهره ورځ رسنۍ ديوه تاوده فدايي کفرځپونکي بريد خبر زمزمه کوي .

داسلامي مقاومت دفدايي مجاهدينوله تازه دمو بريدونو نه داسې جوتيږي، چې سږنۍ ژمی به هم اشغالګر عسکرپه آرامه شپه تيره نکړي اوپرله پسې به د خپلواکۍ ګټونکيو قافلوتر بريدونو لاندې وي ،دنورو ژموپه پرتله سږنۍ ژمی رښتياهم هره لحظه ديوه جهادي بريد شهادت ورکوي اونړيوال ديوه تاوده پوځي خبر شاهدان وي .

دپيښوشنونکي آندي ،چې ددې شونتياډيره بريښي ،چې لاملونو کې دې يې داهم وي چې د( اشرف غني +ډبل عبدالله + کمونست دوستم )غوندې بدنامې څيرې چې کلونه مخکې لاټولنې استفراق کړي او اسلامي او افغاني هويت يې ،لکه ديوې بازارۍ ناڅکې غوندې دارزښت او تشخص له معراجه لويدلي، په غيرمترقبه توګه دخاموش اکثريت دارادو خلاف واک ته ورسيدل ،اوښايې چې ددوئ له واکمنيدونه وروسته به نور هم پسې هيواد کې جګړه ايزبهير تنداو تشديد شي، اوامريکايان به ډيرهغه څه دسرپه سترګو وګوري، چې تيرو کلونو کې يې نه وو کتلي .

دهلمند د(شوراب) دپوځي هډې خلورورځنۍ اوږده او متداومه جګړه ،چې له امله يې داشغالګرواودوئ دګوډاګيانو دغرور کنګري ونړيدي ، ۱۰ تنو مجاهدوطالبانو د ليندی پر ۶مه د شپې پر ۸ بجو پکې وکړای شول، چې جګړه پيل کړي اوپرله پسي څلور ورځې يې دهډې دننه دګوډاګۍ اردواو خارجي بادرانو سره يې مقاومت وکړ ،چې له امله يې سلګونه عسکر مړه او ژوبل شول او په درجنو شوبلي او پوځي وسايط يې هم ويجاړ شول،حقيقت کې دادمجاهدينو هغه تاريخي بريـاده، چې لـه املـه يې دواشنګټن ،بروکسل او لندن داستکبار بروجونه ولړزيدل، اودنيواکګرو دتلپاتې ميشتيدنې خيالي خوبونه يې بې تعبيره پريښودل .

دنورهيـواد غونـدې پلازمينـه کابـل کـې داشغالګروپه عيسوي دعوتي هډو ،استخباراتي مراکزواو داشغالګروپه ميلمستونو پرلـه پسي داستشهادي کنډکونو مرګـاني ګوزارونـه ،هغـه څـه دي، چـې دامنيتـي سندلاسـليکونکي او طراحـان يـې هـم ځـان تـه هـيښ کـړي اوددې مصؤنوځايونو دامنيت ساتونکيو ګانده يې تر جدي سوال لاندې راوستې ده ،معلوميږي چې مجاهدين به خپل پوځي کمپاين نه دروي ،نور به يې هم چټک کړي او پرلـه پسي به ورتـه نوي نوې هدفونـه وټـاکي، ترڅو يرغلګروتـه وښـيي ،چې افغانستان يو خپلواک هيواداو دتل لپاره به دخارجيانو هستوګنځی نشي، نه به افغانان چاته ددې اجازه ورکړي، چې ددوئ هغه خاوره چې څو وارې دميلونو شهيدانودسپيڅلو دوينو پـه نذرانو لـه دهريت ،کفرياتو او ديرغلګرو لـه ناپـاکو قدمونوڅخـه پريمنځـل شـوي ،بيـا دې دچټلـو انسـانانودهوس او خواهشـاتودپوره کولوځای وي.

هيـواد کې دوروسـتيو فتوحـاتوغير مترقبـه تشـديد داپـه ډاګه کـړه، چـې دمجاهـدينو پوځي قـوت دهيوادپه دننه کې ځای پرځای اوهروخت کـولای شـي ،چـې دنيواکګرودظالمانـه تيـرې

پروړاندې غبرګون ونښيي ،ارګ چې اوس پکې دميسحي (رولاغني) له(نا متبر کو) قدمونو له کبله دمسجدپرځای کليسا جوړه شوي او دافغاني ښځوپه اصطلاح دمشرې ميرمن په صفت نړيوالو خبري غونډو او ځانګړو مجالسو کې پراسلامي شعايرو او مقدساتو نيوکې کوي ،څرګندوي: چې دافغانو مسلمانو ښځو دعيسوي کيدو په لټه کې ده،اوپه آند به يې کلونه وروسته هرو سلو کې پنځه ويشت ښځې (خدای ج مکړه) دحضرت عيسی ع منسوخ دين قبول او له اسلامه به واوړي ،دا او دې ورته نورې ناندريزه موضع ګانې مطبوعاتي کول او له اړتيا پرته يې ډاګيز کول دنړيوال متفکر!! دمتزلزلې واکمنۍ پروړاندې دپوځي غبرګون يو ښه مظهر شواو هم يې دارګ دې واکمنو او ددوئ خارجي بادارانوته ددې ډاګيز پيغام ورکړ،چې دلته څوګ راغلي نو بير ته روغ نه وتلي ،که چير ته مو داوږدې اوسيدنې اراده کړې وي، دخپلو پيرنګي مشرانو په برخليک به اخته شئ!

دکابل او شوراب کفرځپونکيو بريدونودا هم په ډاګه کړه، چې دکابل داداراې يوه درجن ستراتيژيکودوستانو،ددوئ دحفاظت لپاره هيڅ ونکړای شول ،نه يې امنيتي سند لاسليک ورته کومه ګټه ورسوله ،نه دارګ دڅيرو ادلون بدلون کومه مثبته پايله ولرله او نه هم ددوئ دلندن ،واشنګټن ،بروکسل او برلين غونډواو ددې ملکونو دمشرانو لاپو شاپو څه نتايج ولرل!!

داهم نړيوالوته په زباد ورسيده ، چې دشوراب غوندې په پياوړې (باسټين) خارجي هډې کې يوازې د طالبانودلس کسيز ګروپ پر مټ څلور ورځې کفرځپونکې جګړې او دامريکا ددومره ستر پوځي طاقت سربيره ددوئ ناکامي او شاګرځ هغه وجوهات دي ،چې له امله يې دښکيلاکګرو عسکرو دغرور برجونه راونړيدل اوپوځي قوت يې دضعف او څوړتيا ښکار شوی دی ...............

دکابل وروستيو بريدونوچې دخپل نوعيت له مخې يې دغربيانو په څوارلس کلن حضور کې ساری نه لاره، ځانته دنورو خارجي مطبوعاتو په څير دکابل نه دچاپ کيدونکيوآزادو يانا آزدو ورځپاڼو پاملرنه هم راړولې اودچارواکيو داډول تکاسل او ضعف يې غندلی دی، چې دڅو هغو دسرليکونو ځينې پراګرافونه به دمدعی دتاييد لپاره رانقل کړو:

**د امنيتي سند له بر کته کابل د جنګ په لومړۍ کرښه بدل شوی!**

کابل چاپ ورځپاڼو د بېلابېلو مطالبو ترڅنګ په کابل ښار کې د وروستيو حملو او کابينې په اړه ليکنې او تبصرې کړې دي.

سرنوشت:

سرنوشت خپلواکې ورځپاڼې په خپل لومړي مخ کې ليکلي؛ له امريکا سره د امنيتي او دفاعي سند له بر کته کابل د جګړې پر لومړۍ کرښه بدل شوی.

همدې ورځپاڼې په خپله سرمقاله کې پوښتنه کړې؛ په افغانستان او په ځانګړې توګه د کابل په ښار کې د وروستيو ناامنيو پوښتنه بايد له چا وشي؟

سرمقاله ليکوونکي خپلې پوښتنې ته ځواب ويلي او وړاندې ليکلي، د کمزورې او غير مسلکي رهبرۍ له امله په کابل ښار کې يادې ستونزې راپيدا شوې او بله اساسي ستونزه دا ده چې زموږ امنيتي ځواکونه لاهم خپله دندې نه پېژني.

ليکوال وړانديز کوي، افغان حکومت د دې ډول حملو د مخنيوي لپاره کارنده امنيتي پاليسي جوړه کړي او دويم دا چې د امنيتي ځواکونو په چارواکو کې پراخ مثبت بدلونونه راولي.

ويسا:

بلې خپلواکې ورځپاڼې ويسا هم په خپلې سرمقالې کې پوښتنه کړې؛ ايا افغانان همدې روندو حملو ته لاس تر زنې کېني چې ترڅو يې د مرګ وار راورسېږي؟

وړاندې په سرمقاله کې راغلي؛ افغانان بايد دې وضعې پر خلاف خامخا جدي غبرګون وښيي.

د ليکوال په باور، ښايي تر ټولو مناسب او معقول غبرګون همدغه وي چې حکومت دې د رواني بې تعريفه جګړې څرنګوالی او زموږ د نړدې يو درجن ستراتيژيکو دوستانو مسووليت اودريځ معلوم کړي.

اوس چې خبره دکابل تر څنډو ورسيده، ددې اړتيا تر هروخت زياته ده، چې خارجيان په خپل پوځي شتون تجديد نظر وکړي او دخپلو عسکرو دوتلو لپاره کومه محفوظه لار ولټوي ،ددې پرځای چې هره ورځ يې يوه درجن عسکر وژل کيږي ،ورته غوره داده ،چې نور په بشپړ ډول له دې هيواده کډې بار کړي او پرېږدي چې افغان ولس له اوسنيو عاقبت نه سنجونکيو چارواکيو سره محاسبه وکړي ، دمحاکمې ميزته يې راکش کړي او دخپلو ناوړه اعمالو پوښتنه ترې وکړي !

# جنګ او تباهي ته څوک

# لمن وهي؟

خليل ـ عزيز

له هغه مهاله ، چې امريکا د امنيتي تړون ، يا د افغانستان د خرڅلاوو په سر کومه لوبه له خپلو ګوډاګيانو سره پيل او بيا ترسره کړه ، د کابل اداري، ډنډوره چيانو او د امريکايي ، ميډيا د مبلغينو د تبصرو او تحليلونو د سرټکي همداوو ، چې د امنيتي تړون لاسليکول د افغانانو لپاره لدې امله حياتي ارزښت لري ، چې په اصطلاح په نورو لاسته راوړنو سربيره به له يوه پلوه افغانستان د ګاونډيانو له مداخلو خوندي وګرځي ، ورسره به د امريکايي عسکرو د خود سره عملياتو ، چاپو او هوايي بمباريو سلسله هم نوره پای ته ورسيږي. !

د امريکايي غلامانو په ژبو او رسنيو کې لاهمدغه اوتې بوتې ګرمې رواني وې او د امنيتي تړون له لاسليک څخه اونی لا نه وې تيرې شوې ، چې امريکايي باداريې خپله دوه مخي او له منافقت ډکه څيره وروښودله ، چې نه ! خبره داسې نده ، د امنيتي تړون دهرې مادې او بند جوړښت صرف د امريکايي اړتياوو او غوښتنو په رڼاکې د تعميل او تطبيق وړ دی ، عمل او نه عمل ، تغير او تبديل او هرډول مفهوم او تعبير ورنه اخيستل هم صرف په امريکايي چاروا کو پورې اړه لري ، چې څنګه ، فهم ورڅخه اخلي او په کوم لوري يې اړوي هغسې به اړول کيږي.

د اوباما هغه ورستي حکم ، چې خپلو جنرالانو ته يې صادرکړی او ددې خبرې اجازه يې ورکړې چې دوئ د ۲۰۱۵ کال ترپايه کولای شي په افغانستان کې خپل هرډول عمليات سرته ورسوي ، په جنګ او جګړو کې برخه واخلي او دډرون بريدونو ، بمباريو او چاپو کرغيړنې لړی ته دوام ورکړي ، د اموضوع خپله روښانوي، چې

د امنيتي تړون لاسليکول

هسې شکلي حيثيت لري او دهغوئ په وړاندې کوم خنډ او محدودی نشي رامخي ته کولای ! که د اوباما دغه پټه اجازه چې نيويارک ټايمز ورڅپاني هغه کشف او رسوا کړې ، بل کوم مفهوم او تعبير ولري ، دکابل ډنډورچيانو او سياستوال دې په دې اړه خپل توضيحات او تشريحات وواېي چې د اوباما د بل کوم دليل له مخې په پټه ديو بل کال لپاره په افغانستان کې د قتل ، وحشت او امريکايي بدماشی اجازه او صلاحيت خپلو لښکرو او جنرالانو ته ورسپارلو؟

دکابل رژيم واکداران دې ووايې چې امريکا د امنيتي تړون په هغه بند چې د ۲۰۱۴ کال ترپايه به خپل سرو عملياتو ته دپای ټکی ږدي ، په خپلې ورستی ګام سره څومره عمل او درناوی يې وکړ؟

که خبره همداسې وي ، لکه چې ده هم ، نو بيا دکابل ډنډورچيانو ولې د اوباما په بدماشی او خود خواهی څه و يلو ته تيار ندي ، او اصلي خبره نکوي چې دکومو وجوهاتو له امله يې بادار د امنيتي تړون په بندونو او وعدو داسې ژر پښه کيښوده .

اوکه جریان دامریکا او کابل رژیم ترمنځ دګډ توافق او غوښتني په رڼاکې مخي ته راغلی وي، لکه چې یوه امریکایي جنرال (اف ، کمپیل ) هم همدغه ټکي ته اشاره کړي ، چې داشرف غني په راتګ سره زمونږ اړیکي له کابل رژ ، دکرزي داداري په نسبت دومره دو ستانه اوتودي دي ، لکه ورځ اوشپه.

دجنرال په خبره ، کیدای شي ، اشرف غني له مونږ سره په ګډ نظر کې ددې غوښتنه کړي وي چې امریکایي ځګړییز ماموریت دې دیوبل کار لپاره هم وغځول شي !

په هر صورت ، که امریکایانو په خپله اویاهم دکابل اداري په غوښتنه

دبل کال لپاره دامریکایي جارحیت دغځولو پریکړه کړي وي ، معنا اومفهوم یې یو اوښکاره ده چې دوئ نه غواړي افغان ولس اودسیمي ولسونه دارام اوثبات ساه واخلي او له امریکایي استبداد اووحشت پرته ژوند ولري.

په لوی سر کې دامریکایانو له لوري دکابل له مزدور رژیم سره دامنیتي تړون لاسلیکول په همدې نیت او فکر وو ، ترڅو دخپلو ښکیلاکي عزایمو دترلاسه کولو په خاطر، افغانستان داور اوبارودو په یوې داسې اډې اومیدان بدل کړي، چې هم افغانستان پکې الله مکره لولپه اوخپل ټول شته اوزخایرله لاسه ورکړي اوهم یې دپرګنو ، باشهامته اسلامي غرور نه جبرانیدونکي زیان ووینې اوپه هغه سربیره ، سیمې ته هم افغانستان دیو لوی ګواښ اوخطر په شکل کې رامخي ته شي.

اوس چې په اغلب ګمان امریکایانو اوکابل اداري ، په شریکه دیوبل کال لپاره دامریکایي وحشت دغځولو پریکړه کړې ، معنایې داده چې دوئ په لوی لاس په افغانستان کې جګړه توده ساتل غواړي اودسولې ترعنوان لاندې چې کومې ناري اوسورې وهي ، هغه صرف تیرایستونکي هڅي اوتش شعارونه دي.

که داسې نه وي ، نو اشرف غني دې یو داسې کوم ژوندی مثال اوقدم وښیي ، چې هغه دامن اوثبات لپاره اخیستی وي او افغانانو ته یې ډاډورکړي وي ،چې هغه به دجګړې تغر ټولوي.

اشرف غني ، امنیتي تړون لاسلیک کړ، امنیتي سلاکار یې ددیني مدارسو

دبندولو لپاره دخپل کثیف پلان له مخه پرده لیري کړه ، لورا غني داسلامي حجاب مخالفت ته راودانګل ، دکابل له ځینو رسنیو څخه داسلام دمقدس دین او سپیځلي پیغمبر ص ، توهین وشو ،

پاکستان چین اوعربستان ته دسفرونو په مهال ، اشرف غني عملا له دغوهیوادونو وغوښتل چې دطالبانو اومجاهدینو په خلاف ورسره په امریکایي جګړه کې پوره ونډه واخلي ، همدارنګه یې ټولو قضایي اوعدلي اورګانونو ته رسما احکامات صادر کړل ، چې داسیرو افغانانو چې دطالب اومجاهد شک اوشبه پرې کیږي په دوسیو اوقضیوکې له سختی څخه کاروا خلي اوداسې نور

افغان ولس ، بائید دامریکایانو اوکابل رژیم ورستي جګړییز سیاست اوناترسه تګلارې ته په کتوداحقیقت نورهم ښه درک کړي ، چې امریکایان اوغلامان یې په هیڅ صورت په افغانستان کې دامن اوسولې برنامه اونیت نلري ، ددوئ دغه غلیمانه ګامونه ددې ایجاب کوي چې مجاهدین هم بائید دکلکو اوځپونکو ګوزارونو اوجهادي تکتیکونو په عملي کولو سره ، داسلام اوافغانیت تاریخي دښمنانو ته عبرتناکه درس ورکړي اوپرې نږدې چې داشرف غني اودشمالي ټلوالې مزدوررژیم اوداشر ف غني عیسوي میرمن ، دافغانانود

اسلامي اوملي معتقداتو دبیخکنی ج رړې وځغلوي اوامریکایي شوم عزایم پلي کړي.

# د اسلام نړیوال قانون

ژباړه شهاب منصور



## دوهمه برخه لیکوال داسلامي نړی ثقه عالم اروابناد دوکتور محمد حمید الله

مکه مکرمه کې چې کله د اسلام لومړی پیلمه و شوه ، هلته دمسلمانانو حیثیت د یو مملکت دننه دبل مملکت په بڼه و، کله چې هجرت وشو، مسلمانان مدینې منورې ته مهاجر شول ، په څو اوونیو کې دننه دننه مسلمانانو یو نوی مملکت جوړکړ، مونږ ته دهغه دستور هم رسیدلی، کوم چې ددې لپاره لاربنود هم دی، چې حکومت څنګه جوړیږي؟ تاریخ کې مونږ دپخوانیو سلطنتونو په اړه داسې څه نه مومو! رسول الله (ﷺ) چې څه مهال مدینې منورې ته لاړ، هلته څو په شمار قبایل میشت وو، دهغوئ ترمنځ دشاوخوا یوسل شل کلو راهیسې دښمنې روانه وه،هېڅ مرکزي حکومت ،یا تنظیم نه و، رسول الله (ﷺ) هغوئ ته وړاندیز وکړ،راځئ د دفاعي او قضائي چارو سرته رسولو لپاره په مدینه کې میشت خلک سره ځانونه منظم او یو کړو! ددي لپاره یوتن به خپل مشر غوره کړو! درسول الله (ﷺ) دا وړاندیز دمدینې خلکو قبولکړ،اوس پوښتنه دا ده،چې ولې دمدینې خلکو رسول الله (ﷺ) دخپل مشر په توګه غوره کړ؟ سره ددې چې مسلمانان دشمېر له پلوه اکثریت نه وو،د مسلمانانو دوه ډلې وي، یوه ډله مدني مسلمانان یعنې انصار ول ،اوبله ډله د مهاجرینو یعنې دمکې نه دلاړو مسلمانانو وه، په هغوئ سربیره مشرکان هم وو، (کومو چې تردي وخته اسلام لا نه وقبول کړی) یهود هم وو، څو عیسایان هم وو، ددومره تنوع او خپلمنځي اختلاف سربیره مونږ وینو چې هغوئ رسول الله (ﷺ) د خپل مشر په توګه اومانه! ددې وجه دا په نظر راځي، چې په مدینه کې دمیشت قبایلو ترمنځ پخوانی لویه دښمنی وي، دا ناممکن وه،چې دهغوئ د منځه څوک مشر غوره کړی و، که د یوې قبیلې سړی یې مشر کړی و، بلې نه مانه، په دا سې حالت کې ټولو ته دا غوره ښکاره شوه چې دریم سړی دمشر په حیث اومني،غالباً همدا وجه به وه چې د ټولو په اتفاق رسول الله (ﷺ) مشر غوره شو، بیا یې دمشر او رعیت حقوق اوفرایض د کاغذ په مخ په ښه تفصیل سره ولیکل ، هم هغه پریکړه لیک ته مونږ دښاري حکومت یعنې د مدینې د ستور وایو! هغه دستور مونږ ته رسیدلی، په هغه کې د کورنیو چارو تنظیمولو، دجنګونو اوسولې په اړه قواعد

اوقوانین لیکل شوي،په هر صورت کله چې دا حکومت جوړشو، مسلمانان ډېر ژر دجنګونو سره مخشول، په دې توګه دهجرت په دوهم کال په بدر کې دمکې مشرکانو سره یعنې دمکې دښاري حکومت دا و دمدینې ښاري حکومت ترمنځ جنګ راغی، په نړیول قانون کې عموماً له دوه شیانو څخه بحث کېږي،یعنې دجګړې په حالت کې او دامن په حالت کې به زمونږ اړیکې دنورو سره څنګه وي؟ رسول الله (ﷺ) ته دامن په حالت کې په لاس یواځي څو په شمار میاشتې ورغلې، دهغه وروسته دبدر جنګ پیښ شو، دنړیوال قانون دویم جزء یعنې دجګړې په حالت کې قوانین څه دي؟ درسول الله (ﷺ) له کړنو څخه مونږ ته ددې بیلګې په نظر راځي، یعنې دجنګ اعلان وکړای شي او که نه؟ په جګړه کې یواځې هغه بالغان نارینه ووژل شي، کومو چې وسله پورته کړي؟ که ددښمن هر وګړی،ماشوم ، ناروغ ، میرمن او غلام هم وژلی شو؟؟ هم داسې که مونږ ته په جنګ کې ددښمن خلک په لاس راشي، نوله جنګي قیدیانو سره به ډول سلوک کولی شي؟ ایا هغوئ به قتلولی شي؟ په وړیا توګه به

پريښودلى شي؟ يا دا چې دفديي په بدل کې به خلاصولى شي؟ يا دتبادلې په صورت کې چې زمونږ کوم قيديان ددښمن سره دي، دهغوئ په عوض کې ددښمن قيديان چې مونږ سره دي خوشي کولى شي؟ په دې توګه ګڼ تفصيلات چې دجګړې دقانون په اړه دي، په دې ټولو کې درسول الله (ﷺ) کړه وړه دمسلمانانو لپاره نمونه دي!! کله دقولي حديث او کله دفعلي حديث، له لارې، په هرصورت په دې دواړو طرقو سره اسلامي قانون جوړ شوى، داسلام دنړيوال قانون وجود ته راغلى! په هغه کې مونږ مومو چې ددې خبرې امتياز نشته چې نامسلمان سړى به په هر دين و، يهودي و، که بت پال دا توپير نشته، له ټولو سره به په ټاکلو قواعدو عمل کېږي، مثلاً دجنګ اعلان ته اړتيا ده، نو دا علان دهغه هېواد په ضد هم کېداى شي چې هغه دکوم دين نه پيروي کوي، دهغه هېواد پرضد هم کيداى شي چې هغه بت پال دى او دهغه پرض هم چې هغه له سره هيڅ هم نه مني او داسي نور...

غرض دا چې په دې توګه رسول الله (ﷺ) په لس کلن مدني ژوند کې داسلام نړيوال قانون لپاره معين قواعد مدون کړل، بيا وروسته چې کله پر دې موضوع کتابونه ليکل پيل شول، مسلمانو مصنفينو دمعمول سره سم لومړى عظيم الشان قرآن ته کتل، قرآني اياتونه يې راوړل، کنه درسول الله (ﷺ) په حديث عمل يې کاوه، چې په فلاني موقع رسول الله (ﷺ) داسې ويلي، يا يې دا کړي! نو اسلامي قانون دادى! داسلام نړيوال قانون درسول الله (ﷺ) دمدني ژوند سره تړاو لري، دمکي ژوند په لوريې مونږ ډېر لږ رجوع کولى شو! ولې هلته ديو حکومت دننه بل حکومت بڼه وه، په هغه دوره کې جنګ ندى پيښ شوى، اګر که دمشرکانو لخوا مسلمانانو ته اذيتونه ورکول کېدل، آن چې وژل کيدل هم، خو د جنګ حکم نه و شوى، وروسته چې مسلمانانو کې فقهې وده وکړه، دکومې په اړه چې ما وړاندې يادونه وکړه، بيا مسلمانو علماوو په فقه کې کتابونه ليکل شروع کړل، دلويديځ په مقابل کې دهغوئ فکر ډېر پراخ و، دقانون دجامعيت لپاره يې دلومړۍ ورځې نه ددين او دنيا دواړو معيارونه په دقت سره وڅېړل، په هغو کې دلمانځه، روژې، زکات اوحج په څير عبادات هم وو، دسوداګرۍ او دوراثت قوانينو سربيره د نړيوال چارو قوانين هم راوړل، داسلامي فقهاوو په اند: نړيوال قانون نوى څېز نه و، بلکې زمونږ خپل څېز و، زمونږ په دې معنى چې داجنبي هېوادونو سره که دجګړې حالت وي، يا دامن حالت، مونږ به په کومو اصولو اوقواعدو عمل کوو؟ هغه زمونږ نړيوال قانون دى! دا نه چې دا مو دنورو په سلا اوخوښه مدون کړى اوبيا ورباندې عمل کوو! بلکې داسلامي فقهاوو په اند: داسلام نړيوال قانون داسلامي قانون يو جزء دى، له دې وجې کله چې اسلامي فقهاوو، دقوانينو دمجموعو په تدوين پيل وکړ، دعباداتو، معاملاتو، رواج، وراثت اونوروترڅنګ يې دنړيوال قانون څېړنه هم ضروري وګڼله! په ظاهره يې ورته د"سير" نوم کېښود، د"ظاهر" قيد ددې لپاره راوړم چې اوس مونږ سره دفقهې کوم پخوانى کتاب دى، هغه دامام زيد بن على رحمه الله کتاب "المجموع فى الفقه" دى، زيد (رضي الله عنه) دزيديه فرقې بنسټ ايښودونکى، د حسين (رضي الله عنه) لمسى او دزين العابدين (رضي الله عنه) ځوى و "زيد بن على زين العابدين ډېر لوى عالم و، هغه د"المجموع الفقه" په نوم کوم کتاب ليکلى، هغه کې يو باب دنړيوال قانون په اړه دى، ور ته يې چې د"کتاب السير" نوم ايښى، "سير" جمع د"سيرت" ده، مشهور حنفي امام "سرخسي" (رحمه الله) پخپل کتاب "المبسوط" کې ليکلي چې له سيرت نه مراد دوا کمنو هغه کړه وړه دي چې دجنګ او امن په دواړو حالتو کې يې داجنبيانو په اړه لحظولى شي او پکې دا هم په ګوته کوي چې د دغه قانون اطلاق نه يوازې د بهرنيو هېوادو په اتباعو کېږي، بلکې زمونږ دهېواد دننه په ميشت دوه ډوله خلکوهم کېږي، يو په مرتد! بل په باغيانو! ددې څخه ثر ګنديږي چې دنړيوال قانون اسلامي تصوردهغه تصور په پرتله چې نن سبا په لويديځ کې شتون لري، ډېر پراخ دى، په هر صورت امام زيد بن على په لومړي ځل د"سير" اصطلاح دنړيوال په معنى کارولې، له هغه مهال راهيسې ترننه په اړه يې چا اختلاف ندى کړى، هر مصنف که هغه حنفي، شافعي، مالکي، حنبلي او شيعه دى ټولو د"سير" اصطلاح په همدې معنى کارولې، له يو استثناء پرته او هغه هم نيمګړې استثناء ده، هغه ډله چې خوارج بلل کېږي، دهغوئ يو فقهې کتاب چې ما په خورا مشکله لاسته راوړى دى، هغه کې د"کتاب السير" په ځاى د"کتاب الدماء" (يعنې دوينو قانون) اصطلاح کارولې، ولې په جنګ کې د وينو له تويولو نه بحث کېږي، ما يې چې په اړه نوره پلټنه وکړه، دتاريخ نه جوته شوه چې ما سره کوم کتاب دى، هغه ديو هم عصر مصنف له کتاب را خستي او پخوانى مصنف ورته د"سير الدماء" نوم ايښى، هغه دسير لفظ چې مونږ يې

کـارو، هغوئ یـې د"دمـاء" یعنـې وینـې سـره تـړي، "سـیرالدماء" یعنـې دوینـو پـه اړه طرزالعمل! خو اوسنیو مصنفینو دسیر لفظ دا چې یوځه درونددی حذف کړی، په "کتاب الدماء سره یې" نومولی، غرض دا چې دنړیوال اسلامي قانون ترټولو پخوانی کتاب چې مونږ سره شته دی، هغه دامام زید بن علی (رحمه الله) کتاب دی، ځوک چې دهجرت په ۱۲۰ کال وفات شوی دی، نوموړی په یو لحاظ دامام ابو حنیفه (رحمه الله) په استادانو کې هم راځي، هغه داموي سلطنت پرضد بغاوت وکړ، ملګرو یې ورسره جفا وکړه او تري جلا شول، بالاخر هغه ونیول شو، دهجرت په ۱۲۰ کال شهید کړای شو او امام ابوحنیفه (رحمه الله) دهجرت په ۱۵۰ کال وفات شوی. د۱۲۰ هجري او ۱۵۰ ترمنځ نوموړي په دې موضوع یو ځانګړی کتاب ولیکه، هغه یې په "کتاب السیر" ونوماو، دنوموړي تاریخ ډېر جالب دی، امام ابوحنیفه هغه فقیه دی، چا چې فتوا ورکړه کـه ټول تدبیرونه ناکام شول، بیا داسلامي سلطنت مسلمان رعیت کولی شي د خپل واکمن پر خلاف بغاوت کولو ته پورته شي، نورفقهاء دد غه ډول فتوا له ورکولو ډاریدل، کله چې امام ابوحنیفه (رحمه الله) فتوا ورکړه، هغوئ یې په رد کې کتابونه ولیکل! دامام ابوحنیفه (رحمه الله) فتوا پردې حدیث بناءوه: "من رأی منکم منکراً فلیغیره بیده، فان لم یستطع فبلسانه فان لم یستطع فبقلبه وذلک اضعف الایمان" یعنې کـه ځوک پر بدو ووینئ، پکاردی هغه په زور منع شي، اصلاح کړای شي، کـه په زور وممکن نه و، بیا په ژبه وپوهول شي! کـه دا وس هم نلري، بیا دي په زړه کې هغه بد وګڼي! کـه یو سړی بل په بد کار کې ښکېل ویني او بد یې نه ګڼي!! لیدونکی ښه مسلمان ندی!! لږ ترلږه په زړه کې بد؛ بد ګڼل دایمان کمزورې مرتبه ده، دا دامام ابوحنیفه مستدل و! نورو فقهاوو چې هغه سره مخالفت کاو، هغوئ ویل: بغاوت پکار ندی، استدلال یې په دې حدیث و: چې کـه واکمن تاسو سره عدل کوي، دخدای (جل جلاله) شکر کوئ او کـه په تاسو ظلم کوي نو بیا صبر کوئ! په دې توګه یوه معنی کې دوه حدیثونه مندل کېږي، چې په ظاهره دهغو ترمنځ تضاد لیدل کېږي، اګر کـه دسیاق او سباق له پلوه جلا دي، امام ابوحنیفه هم دا نه ویل: چې هر وخت په هره کوچنی خبره دوخت دحکومت خلاف پاځون روا دی، بلکې هغه شرط ږدې چې کله ټول کوښښونه ناکام شي، بیا دواکمن پرضد پاځون پکار دی، دلته په کومه موضوع چې بحث کوو، یعنې داسلام دنړیوال قانون په لړ کې دا کتاب دومره لوی اهمیت لري، چې کله امام ابوحنیفه (رحمه الله) هغه ولیکه، نو سملاسي یو بل معاصر فقیه امام اوزعي (رحمه الله) په رد کې یې یوه رساله ولیکله، بدبختانه چې هغه اوس مهال له مونږ سره نشته، او نه دامام اوزعي کتاب، سیوا دځو هغو اقتباساتونه، کوم چې امام شافعي (رحمه الله) پخپل "کتاب الام" کې راټول کړي، له هغونه جوتیږي چې دکومو، کومو خبرونو په برخه کې امام اوزعي دامام ابوحنیفه (رحمه الله) سره اختلاف کړی؟ اوزعي ددمشق فقیه و، امام ابوحنیفه دعراق و، کله چې اوزعي دهغه په کتاب نقد ولیکه، امام ابوحنیفه خپله مناسب ونه ګڼله چې هغه ته ځواب ولیکي، پخپل یو شاګرد (امام ابویوسف) یې ورته ځواب ولیکه، دا کتاب هم مونږ سره خوندي نشته، البته دامام شافعي (رحمه الله) پ "کتاب الأم" کې چې کوم اقتباسات دي، په هغو کې یې یادوونه شوي، چې دهغو اقتباساتو په مرسته ما یو کتاب ترتیب کړ، هغه دحیدراباد دکن "مجلس دایرة المعارف" په کوښښ چاپ شوی، دهغه کتاب نه، دامام ابوحنیفه، امام اوزعي، امام ابو یوسف، او پخپله دامام شافعي په نیوکو او ځوابونو علم راتلای شي، په دې توګه دامام شافعي دکتاب په برکت ددغو نایابو کتابونو ذخیره له مونږ سره خوندي ده، کـه ځو هم هغه کتابونه په بشپړ ډول مونږ ته ندي رسیدلي، په دې لړ کې ابن حجر په "تاسیس التوالیف" کې کوم چې دامام شافعي دژوند په باب دی، یوځای لیکلي: په "سیر" باندې ترټولو اول امام ابوحنیفه کتاب لیکلی و، دکوم ځواب چې امام اوزعي او هغه ته "جواب الجواب" امام ابویوسف لیکلی و، بیا پرې تبصره امام شافعي پخپل کتا (کتاب الام) کې لیکلي!! دا و داسلام دنړیوال قانون په اړه دکتابونو دپیل سرګزشت چې تاسو ته مې عرض کړ.

داسلام دنړیوال قانون بحث ترټولو مخکې د"زیدبن علی" په کتاب "المجموع" کې راغلی، خو دهغه یوازې یو باب ددې موضوع په اړه دی، ځنګه چې ابن حجر ویلي: چې په دې موضوع مستقل کتاب ترټولو ړومبی امام ابوحنیفه (رحمه الله) لیکلی و، او باور دی چې هغه به دخپل معمول سره سم خپلو شاګردانو ته په دې موضوع درس ورکړی وي، ولې دامام ابوحنیفه د درس ویلو طریقه

داسې وه چې په پيل کې به هغه خپل علمي معلومات بيانول، بيا يې د شاګردانو سره دهغو معلوماتو په اړه بحث کاو، له هر شاګرد نه يې دهغه رايه پوښتله، په دې توګه به مختلف اړخونه اونکات را څرګند شول، بيا دامام ابوحنيفه (رحمه الله) دهمدې درسونو اوليکچرونو په مرسته ښه ضخيم، ضخيم کتابونه وليکل شول، په دې موضوع دامام ابوحنيفه کتاب ترموږ ندی رسيدلی، خو ښکاري چې هغه به شاوخوا شل پنځويشت مخونو کې و، البته په دې اړه، دهغه د شاګردانو، امام محمد شيباني، امام زفر او امام ابراهيم الفزاری کتابونه په سوونو مخونو کې تر موږ رسيدلي!! زما په نظر ممکن سهې نه وي، چې کله امام ابوحنيفه (رحمه الله) په دې موضوع درس ورکاو، د درس يادښتونه يې دکتاب په بڼه مدون کېدل، کوم چې وروسته شاګردانوته منسوب شول، دهغونه دامام الفزاري کتاب دمخطوطې په شکل په مراکش کې شته دی، ما يوځل دهغه دلوست کوښښ وکړ، خوداچې د کوفي خط په ليکدود ليکل شوی په ډېره مشکله مې څو مخونه ولوستل، بيا مې پريښود، تراوسه دهغه فوتو کافي ما سره شته ده، دځيرولو نوبت يې ندی راغلی.

امام محمد شيباني چې دامام ابوحنيفه شاګرد دی، هغه په دې موضوع دوه کتابونه ليکلي، چې يو ته "کتاب السير الصغير" ويل کېږي، اوبل ته "کتاب السير الکبير"؛ لومړی يې "السير الصغير" ليکلی و، امام اوزعي طنزاً وويل: عراقيانو څنګه په دې موضوع دليکلو جرئت وکړ؟ ځکه هغوئ خو دحديثو سره زيات بلد ندي، په غبرګون اوځواب کې امام محمد د"کتاب السير" په نوم يو بل جامع کتاب وليکه، کله چې دهغه يو ه نسخه يې بشپړه کړه، هغه دومره لويه وه، چې خليفه "هارون رشيد" ته يې دڅالۍ په توګه کله وروړله، نو بګۍ کې يې انتقال کړه، هغه (کتاب السير) موږ ته دمفصلې شرحې په صورت کې رسيدلی، کولی شو چې دشرحې نه هغه جلا ترتيب کړو! خو شرحه يې هم ډېره ښه شرحه ده، امام سرخسي چې دپنځمې هجرې پيړۍ مشهور حنفي فقيه تير شوی، ددې کتاب شرحه يې ليکلې، دامام سرخي دشرحې باره کې به تاسوته يوه ډېره دعبرت نه ډکه کيسه وکړم: هغه داچې امام سرخي ډېر زيات ذهين، حق پالونکی، حق ويونکی عالم اوبې جوړې فقيه و، دهغه باره کې مشهوره ده چې هغه بندي شوی و، ځما درانه استاد "مولانا مناظر احسن ګيلاني رح" رايه دا وه چې امام سرخسي ديوې فتوا ورکولو له امله بندي شوی و، هغه مهال د "قره خان" په نوم واکمن و، هغه به له خلکو نه په ظلم ماليه او ټيکسونه اخستل، امام سرخسي فتوا ورکړه، چې درعيت لپاره ناروا ماليه ورکول ضرور نده!! دې واکمن په غوسه کړ، داچې امام سرخسي دوخت لوی فقيه و، په خلکو کې زيات منلی و، له دې وجې پاچا يې د وژلوجرئت ونکړای شو! هغه يې په يوه توره کنده کې قيد کړ! دقيد موده آن ترڅوارلس کلو وغځيده! په دغه موده کې هغه پاچا پخپله يا دمحبس درئس لخوا دامام سرخسي شاګردانو ته اجازه ورکړه، چې تاسي کولی شي هر سهار دکندې په غاړه کينئ! او دخپل استا دخولې ارشادات يادداښت کړئ! دمحبس درئيس ددې علم دوستئ زه هم شکر ګذاريم! او باور دی چې تاسو به هم وئ!، د څوارلس کلو نو په موده کې امام سرخسي (رحمه الله) به په لوړ غږ شاګردانو ته املاء کوله! په دې ترتيب شاګردانوبه دهغه درس ليکه! تردې چې دهغو نه ضخيم، ضخيم کتابونه تيار شول، نن موږ دهغو کتابونو دفهرست په ليدلو حيران پاتې کېږو! غالباً تاسو به خبريئ، چې "کتاب المبسوط" په ديرشو ټوکونو کې چاپ شوی! دا ټول له هغه کندې نه ليکل (املاء) شوی، "شرح السير الکبير" په څلورو ټوکونو کې لوی کتاب دی، هغه يې هم له بندي خانې څخه په شاګردانو داملاء کولو دلارې ليکلی دی، هم دا راز دفلانې کتاب شرح ، دفلانې کتاب شرح او ديو درجن نه زيات کتابونه کېږي، چې هغه ټول يې دهمدې قيد په زمانه کې د املاء کولو له لارې ليکلي، خدای (جل جلاله) موږ ته ازادي په نصيب کړي، موږ ته پکار دی چې د ازادۍ نه ګټه واخلو! له علماوونه علم ياد کړو، چاچې دبندي خانې دننه په داسې حال کې چې هيڅ يو کتاب هم ورسره نشته ، بيا يې هم ځان معذوروګڼلی نه دی، خپل علم ته يې شانکړه او يوه داسې لامثال علمي کارنامه يې سرته و رسوله او دومره لوی خدمت يې وکړ ، چې نن ډېر لوی، نه لوی عالم هم دهغه خدمت په عشر عشير کولو هم وياړي!

نوربيا



دافغانستان داسلامي امارت د پوهنې دکميسيون رئيس له شهامت سره په مرکه کې:

# په هر ولايت کې زمونږ ښوونځي فعال اوله پوره پاملرنې او څارنې برخمن دي



**لومړی پوښتنه:** لومړی که خپل ځان را معرفي کړئ او بيا په تير کال کې د تعليم او تربيې د کميسيون د پر مختګونو او فعاليتونو په هکله که معلومات راکړئ او داراتهو وواياست چې په دې برخه کې تاسو له کوموجدي ستونزو سره مخ سوي ياست؟

**ځـــــواب:** نحمده ونصلي على رسوله الكريم امابعد:

ستاسودلومړۍ پوښتنې د لومړۍ برخې په اړه به ووايم چې:

زه مولوي محمداقبال د کابل ولايت اوسيدونکی د اسلامي امارت د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون مسئوليت په غاړه لرم.

او د پوښتنې دوهمه برخه چې يو څه تفصيل غواړي کوښښ به وکړو د تير کال د پرمختګونو او برياوو په هکله تاسو ته يو څه معلومات درکړو او د ځينو ستونزو يادونه به هم وکړو ان شاالله.

محترمو! تاسو ته معلومه ده چې د ښوونې اوروزنې او لوړو زده کړو کميسيون د خپل مسئوليت په دننه کې په مختلفو استقامتونو کار کوي لکه: دديني ليليه مدارسو، کليوالي مدرسو، دارالايتامونو، دارالحفاظونو، عصري تعليمي ادارو، د لوړو زده کړو مؤسساتو او پوهنتونونو، دافتاء اوقضاء د تخصصي درسونو اوداسې نورو...

لله الحمد مونږ په هره برخه کې پرمختګونه لرو چې په لنډه توګه يې په لاندې ډول وړاندې کوو:

**۱- ديني ليليه مدارس:**

الف: لکه چې تاسو ته معلومه ده د دغو مدارسو لپاره يو جامع نصاب ترتيب شوی او په هغې سربيره د دغو مدارسو د نظم، ښوونيز کيفيت د لوړولو، ازموينواو نظارت کولو او نورو اړوند مقرراتو لپاره په شلو (۲۰) مادو مشتمله يوه ضابطه او تګلاره د مدارسو د استاذانو او شيوخو د مشورو په نتيجه کې ترتيب شوې ده.

د تعليمي نصاب او د دغو اصولو او مقرراتو د تطبيق په منظور د ۱۴۳۴ هـ ق تعليمي کال د شوال المکرم د مياشتې په لومړيو کې چې تعليمي کال پيل کيږي زمونږ د تعامل سره سم د ټولو مدارسو د مهتممينو او مسئولينو غونډې په مختلفو ځايونو کې راوغوښتل شوې او د نوي تعليمي کال پروګرامونه ورته تشريح او د تير کال اجراءات وڅيړل شول.

ب: د تير ۱۴۳۵ هـ ق تعليمي کال د ربيع الثاني د مياشتې په (۵-۶) نيټه دوې ورځې د دغو ليليه ديني مدارسو د لسمې (موقوف عليه) درجې د طالبانو ترمنځ يوه تقريري مُسابقه (سيالي) تنظيم شوه دغه تربيتي تقريري سيالي چې په دوو (۲) کاري طرفونو کې هم مهاله ترتيب شوې وه د (۷۱) مدارسو (۷۱) تنو طالب العلمانو يکې برخه واخيسته د هغوی لپاره د تقرير موضوع (په شريعت کې د فقهي اهميت او ضرورت) ټاکل شوې وه چې دوی خپل تقريرونه د همدې موضوع

په اړه عيار او تر تيب کړي وو د تقريرونو د څېړنې او ارزيابۍ او نمبرو ور کولو لپاره ور ته د علماؤ او مسلکي اشخاصو څخه هيئت ټاکل شوی ؤ چې هم مهاله يې د دوی تقريرونه ارزيابي کول او نمبرې ور ته لګولې ، په تقريري مقابله کې د کاميابۍ او د ښو نمبرو د حصول لپاره ور ته لاندې څلور معيارونه ټاکل شوي وو :

(۱) په موضوع کې انحصار او خروج د بحث نه نکول ، او د موضوع اثبات په دلا ئلو معتبرو وو سره .

(۲) په فصاحت او بلاغت سره تقرير کول د الفاظو صحت ، منطقي تسلسل او حُسنِ ابتداء او اختتام په پام کې نيول.

(۳) په جرأت ، او جهوري صوت سره تقرير کول ، او په تقرير کې د سامعينو او ناظرينو توجه را جلبول.

(۴) د شريعت او نبوي سنتو مطابق هيئت او صورت لرل ، او د تقرير په جريان کې مناسب انداز خپلول او د نامناسبه حر کاتو څخه اجتناب کول.

د تقرير لغت په پښتو، فارسي او عربي ژبو ټاکل شوی ؤ خو په عربي ژبه يې امتياز درلود چې په دغه لړۍ کې الحمدلله د مسابقې برخه والو طالبانو پوره امادګي نيولې وه او په ټولو پور تنيو ژبو يې تقريرونه وکړل او د موضوع په باب يې ښه مستند دلائل وړاندې کړل چې هم يې خپل استعدادونه وازمايل او هم يې نورو ته پوره معلومات وړاندې کړل ، په پای کې د هر کاري طرف لسو لسو غوره مقررينو ته په متناسب توپير سره انعامونه او تحسين نامې ور کول شوې.

ج: د ۱۴۳۵هـ ق تعليمي کال د رجب المرجب په (۱۸) نېټه د دغو مدار سو د يولسمې درجې (دورة الحديث) او لسمې درجې (موقوف عليه) د طالبانو کلنۍ ګډې او هم مهاله ازموينې واخيستل شوې چې (۶) ورځې يې دوام درلود ، دغه ازموينې چې د يوه منظم پروګرام او تر تيب له مخې په ګنو مر کزونو کې تر سره شوې نګرانان ور ته ټاکل شوي وو په يو وخت به شروع کېدلې او يو وخت به پای ته رسيدلې ، د دغو امتحاناتو پارچې د استاذانو او شيوخو لخوا کتل شوې په لنډ وخت کې به يې نتيجې اعلان شي او کامیابو اشخاصو ته به ښه معتبر او په زړه پورې سندونه ( شهادت نامې ) ور کول شي.

د: د ۱۴۳۵هـ ق تعليمي کال د شوال المکرم د مياشتې په لومړيو کې چې د دې تعليمي کال پيل دی يوځل بيا د مهتممينو او مدار سو د مسئولينو غونډې او مجلسونه جوړ شول او د نوي تعليمي کال د پروګرامونو په اړه ور ته لازم هدايات او معلومات ور کول شول لکه د نصاب د پوره تطبيق اهتمام کول ، د داخلي امتحان اخيستل ، د حاضرۍ د ضوابطو عملي کول او بالآخره د شلو مادو د پوره رعايت کولو او داسې نورو مهمو ټکو سپار ښتنه ور ته وشوه او هم په سږ کال کې د يوې بلې درجې يعنې د ( متوسطه ) درجې د کلنۍ ګډ امتحان چې په هم مهاله توګه به اخيستل کيږي دوی ته خبر ور کول شو.

هـ: د ټولو مدار سو لپاره د استاذانو او شاګردانو د حاضرۍ کتابونه په مناسب سايز او ښايسته ډيزاين چاپ او ټولو مدار سو ته توزيع شول تر څو استاذان او شاګردان د حاضرۍ په ضوابطو مکلف او د بې نظميو مخه ونيول شي.

و: په سږ کال کې به د ديني مدار سو د نصاب مطابق د مروجه علومو د ټولو کتابونو د اسباقو لپاره د ورځو ، هفتو او مياشتو په حساب کلنۍ مهال ويش جوړيږي تر څو اسباق په تدريجي ډول د ټول تعليمي کال په موده کې د دريو ازموينو د وختونو په تناسب پرمخ لاړ شي او په اسباقو کې د کميت او کيفيت له لحاظه ښه نظم او دسپلين رامنځ ته شي .

۲ - کليوالي مدرسې:

الف: دغه کليوالي او نهاري مدرسې چې زمونږ د کميسيون له مهموهدفونو څخه دي ځکه چې زمونږ د کليوالي سيمو ضرورت او اړ تيا ور ته ډيره ده نو ځکه کميسيون سږ کال د ۱۴۳۵هـ ق کال د جمادی الأولیٰ په (۶ - ۷) نېټه په عمومي غونډو کې پريکړه وکړه چې د هغه مخکنۍ عمومي پروګرام سربيره چې د کليو امامان به د خپل کلي د ماشومانو په درس او تعليم مکلف وي د سږ کال لپاره به د ولايتونو د ښونې او روزنې رئيسان مکلف کېږي تر څو په خپلو مربوطه ولسواليو کې په هره ولسوالۍ کې اقلاً دوه دوه داسې منظمې مدرسې جوړې کړي چې منظم پروګرام ، ټاکلي استاذان ، د حاضرۍ ضوابط او ازموينې ولري چې په ډيرو ولايتونو کې دغه کار عملي شوی او ډيرې داډول مدرسې تأسيس شوې دي چې دغه لړۍ به ان شاء الله نورې کړۍ هم وموي.

ب: د دغو کليوالي مدرسو لپاره چې کوم نصاب جوړ شوی ؤ اوس يې د بيا کتنې مراحل نږدې بشپړ شوي دي د علماؤ او شيوخو تر مطالعې او کتنې لاندې دي په لنډ وخت کې به چاپ شي ان شاءالله.

۳ - دارالحفاظونه:

الف: د ۱۴۳۵هـ ق کال د ربيع الأول په مياشت کې د جيدو او تجربه لرونکو حافظانو او د دار الحفاظونو د استاذانو عمومي غونډې او مجلسونه جوړ شول چې پکې د دار الحفاظونو لپاره د يو مختصر نصاب د جوړولو او دغه راز د دار الحفاظونو لپاره د ضوابطو او مقرراتو د تر تيبولو په خاطر نظريات راټول شول چې اوس د کميسيون لخوا تر کتنې او توحيدولو لاندې دي د دغو نظرياتو او نورو مشورو په نتيجه کې به د دار الحفاظونو د شاګردانو لپاره داسې يو مختصر او لنډ نصاب جوړ کړل شي چې د دار الحفاظونو شاګردان به د حفظ تر څنګ د دغه نصاب په لوستلو سره د ديني عقائدو او ضروري شرعي احکامو څخه هم پوره معلومات ولري او هم به دار الحفاظونه د نظم او پرمختګ په خاطر ضوابط او مقررات ولري .

ب: د دار الحفاظونو د عمومي کيفيت د سموالي او د قرآن کريم د حفظ د اهتمام په منظور د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون د تير کال په لومړيو کې پريکړه وکړه تر څو د ټولو دار الحفاظونو د کامل الحفظ شاګردانو څخه کلنی مشترک امتحان په هم مهاله ډول واخيستل شي تر څو له يوې خوا په دې سره استعدادونه وځليږي او له بلې خوا د قرآن کريم د حفظ د ښه کيفيت اهتمام زيات شي نو هماغه ؤ چې په (۱۱) د رجب المرجب ۱۴۳۵ه ق کال په ټولو دار الحفاظونو کې دغه ازموينه تر سره شوه، سمتونه او حوزې ور ته تعيين شوې، د هرې حوزې لپاره دوه دوه جيد او مجرب حافظان د ممتحنينو په توګه وټاکل شول د سوالونو او پوښتنو ترتيب او نور مربوط معيارونه ور ته په ښه شوې وو چې تقريباً د يوې هفتې په موده کې دغه امتحانونه واخيستل شول چې يوزر اويا (۱۰۷۰) تنو کامل الحفظ حافظانو امتحان ورکړ، بيا د کميسيون لخوا د نتائجو د ترتيب څخه وروسته کامياب حافظانو ته په زړه پورې سندونه توزيع کړی شول چې دغه يوه لويه لاسته راوړنه وه چې ټول دار الحفاظونه يې خپلو کاري مسؤليتونو ته متوجه کړل او دغه لړۍ به نوره هم د کيفيت په ښه والي سره پرمخ ځي.

۴- عصري تعليمي ادارې:

الف: د عصري تعليمي ادارو د مراقبت او نظارت په لړ کې او د دغو ادارو د زده کونکو ديني او تربيتي اړخ ته د پام لرنې او سمونې په منظور سږ کال په بيلابيلو ولايتونو کې د لېسو د دولسمو ټولګيو د زده کونکو ترمنځ د تقريري مسابقو په ترڅ کې تربيتي پروګرامونه جوړ شول دغه پرګرامونه چې په (ميدان وردګو، ننګرهار، پکتيا، غزني، کندز او داسې نورو) ولايتونو کې په مختلفو وختونو کې ترتيب شول لاندې ځانګړ تياوې يې درلودې.

۱- دغه تربيتي پروګرامونه د هرې ولسوالۍ په سطحه جوړ شول.

۲- د هرې لېسې څخه د دولسم ټولګي يو زده کونکي برخه پکې اخيسته او دا به هغه زده کونکی ؤ چې د خپلې مربوطه ليسې په سيالۍ کې به په لومړۍ درجه کې راغلی ؤ.

۳- د تقرير موضوع ورته سيرت النبی صلی الله عليه وسلم ټاکل شوې وه.

۴- د تقريرونو د ارزيابۍ او څېړنې لپاره د علماؤ او فني اشخاصو څخه هيئت ورته ټاکل شوی ؤ چې هم مهاله يې د دوی تقريرونه او ورسره ټول هغه معيارونه چې په ګوته شوې وو ارزيابي کول او نمبرې يې ورکولې.

۵- په تقريري مقابله کې د کاميابۍ او د ښو نمبرو د حصول لپاره ورته لاندې څلور معيارونه ټاکل شوې وو: ۱- په موضوع کې انحصار او خروج د بحث نه نکول، او د موضوع اثبات په دلائلو معتبرو وو سره. ۲- په فصاحت او بلاغت سره تقرير کول د الفاظو صحت، منطقي تسلسل او حُسنِ ابتداء او اختتام په پام کې نيول. ۳- په جرأت، او جهوري صوت سره تقرير کول، او په تقرير کې د سامعينو او ناظرينو توجه راجلبول. ۴- د شريعت او نبوي سنتو مطابق هيئت او صورت لرل، او د تقرير په جريان کې مناسب انداز خپلول او د نامناسبه حرکاتو څخه اجتناب کول.

۶- دغه پرګرامونه چې يوه ورځنی وو په پای کې ښو نمبرو اخيستونکو ته انعامات او جائزې ورکول کېدې دغه پروګرامونه چې په راتلونکي کې ده په نظر کې ده په راتلونکي کې په بيلابيلو ديني، عقيدوي، ادبي او اخلاقي موضوعاتو مشتمل وي په ډيرو ځايونو کې جوړ شي ځکه له يوې خوا د مقررينو د تقرير کولو او خطابت په فن کې تجربه پخوي او له بلې خوا د اوريدونکو او کتونکو زده کونکو معلومات زياتوي.

ب: د دغو عصري تعليمي اداراتو د عمومي نظارت او مراقبت په لړ کې سږ کال هم د کميسيون لخوا د ولايتي تعليمي مسؤلينو او هم د ولسواليو د تعليمي مسؤلينو لخوا د دغو ټولو عصري تعليمي ادارو د نظارت لړۍ دوام درلود د دغو ادارو د څارنې لپاره د ځانګړې لائحې او دستور العمل په رڼا کې د دغو ادارو عمومي پروګرامونه، تعليمي نصاب، د استاذانو او زده کونکو کړه وړه، مهال ويش او د حاضرۍ ضوابط او داسې نورې اړونده چارې په ټولو ولاياتو کې وڅېړل شوې د امنيتي شرائطو په پام کې نيولو سره په مختلفو ولايتونو کې غونډې او جلسې ترتيب او د علماؤ او د امارت د مسؤلينو لخوا ورته لازم هدايات واورول شول او هغوی يې خپلو ديني، عقيدوي، جهادي او اخلاقي مسؤليتونو ته متوجه کړل.

۵- پوهنتونونه او لوړې زده کړې:

الف: په دې هکله بايد ووايم چې پوهنتونونه او د لوړو زده کړو ادارې که څه هم په غټو ښارونو او د دښمن او غلامي ادارې تر واک لاندې سيمو کې دي خو د هغو سره زمونږ دوامداره اړيکې شته، البته کړنې او اجراءات مو له هغو سره د نورو تعليمي اداراتو په پرتله توپير لري کميسيون ضروري او اړينه بولي چې د دغو اداراتو د اصلاح او بهبود لپاره هميشه جدي ګامونه واخلي ځکه د دغو لوړو زده کړو محصلين او زده کونکي زمونږ د ملت هغه غړي دي چې د خپل تعليم وروسته، شيبې تيروي نو ځکه کميسيون داسلامي امارت د هداياتو او لارښونو په رڼا کې د دغو اداراتو د استاذانو او زده کونکو سره د مختلفو لارو څخه خپل روابط او اړيکې په منظم ډول ساتي، هغوی ته د اسلامي امارت د اسلامي، سياسي او جهادي پاليسيو په اړه وخت په وخت معلومات ورکوي

او هغوی خپلو ديني ، ملي او علمي مسؤليتونو ته متوجه کوي ، د هغوی سره د ضرورت په وخت کې له نږدې ليدنې او کتنې تر سره کيږي ، هغوی ته د ارتباط وسائل او نور ضروري مواد په واک کې ور کول کيږي او په ټولو تعليمي امورو کې د هغوی نيکې مشورې او وړانديزونه منل کيږي .
ب : سږ کال کله چې د کندهار پوهنتون يو شمير استاذان او محصلين د ځينو ملحوظاتو په خاطر د کابل - کندهار پر لويه لار د غزني ولايت په مربوطاتو کې د اسلامي امارت د مجاهدينو لخوا د ځو ورځو لپاره ستانه شول ، په پای کې د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون د ټاکلي هيئت لخوا هغوی ته د اسلامي امارت تعليمي پاليسي واضحه او د دغو ادارو سره ښه نيت څرګند شو او هغوی وهڅول شول تر څو د دښمن په تبليغاتو غوږ ، و نه نيسي ، حقائقو ته دې متوجه شي ، د اسلامي امارت په تعليمي پاليسيو او حقانيت بايد ځان و پوهوي . بالمقابل هغوی هم ژمنه وکړه چې خپل اسلامي مسؤليت به ادا کوي او په خپلو مربوطه ادارو کې به اصلاحات راولي او اسلامي امارت سره به خپلې اړيکې ساتي ، که څه هم په دې ډله کې ځينو کسانو څرګندې نيمګړ تياوې درلودې خو د اسلامي امارت د مهربانۍ له مخې او د هغوی علمي مسلک ته د درناوی په خاطر ټول د خوښۍ په فضاء کې بير ته ازاد شول .
ج : د ښوونې او روزنې او لوړو زده کړو کميسيون په پام کې لري د دغو ادارتو سره د روابطو ، د هغو د کړو وړو او فعاليتونو د نظارت او مراقبت او نورو مربوطه امورو لپاره يوه منظمه تګلاره او طرز العمل جوړ کړي چې د هغې په چوکاټ کې به دغه د اصلاح او نظارت لړۍ نوره هم لا ښه منظمه شي .
۶ - د افتاء او د قضاء د تخصص اداره:
د افتاء او د قضاء د تخصص اداره لکه څنګه چې مخکې يې د تأسيس او پرانستلو وعده شوې وه چې د اسلامي امارت د ښوونې او روزنې او عالي تحصيلاتو کميسيون تر إشراف لاندې به جوړيږي تر څو هغه فارغان چې د ديني مدارسو د يولسمې درجې (دورة الحديث) څخه په اعلیٰ درجه سند تر لاسه کوي نو به د افتاء اود قضاء د تخصص د ادارې له لارې د افتاء او قضاء په برخه کې خپل تخصصي تحصيلات بشپړوي.
سږ کال د الله جل جلاله په مرسته د دغې ادارې په افتتاح کولو بريالي شوو د (۱۴۳۵هق) کال د ذوالحجة الحرام د مياشتې په دريمه نېټه د شنبې ورځ يې افتتاح وشوه چې دغه تخصص به د دوو کالو مودې لپاره وي ، ځانګړی نصاب ور ته تر تيب شوی ، پنځه تنه استاذان چې درې يې د افتاء او دوه يې د قضاء په برخه کې تعليم ور کوي ټاکل شوي او د ضرورت سره سم د پام وړ سهولتونه او اسانتياوې ور ته برابرې شوې دي او کوښښ کوو دا ډول مرکزونه او ادارې د ضرورت په غوښتنه په دوه نورو ځايونو کې هم تأسيس او افتتاح کړو.
د يادونې وړ ده چې دغه ددوه کالو موده د هغو زده چې ابتداءً افتاء او قضاء زده کوي ، البته د اسلامي امارت د برحاله قاضيانو لپاره به په همدې اداره کې لنډ مهاله درسونه او کورسونه جوړيږي چې ګروپ ګروپ به راځي خپلې زده کړې به بشپړوي او بيا به بير ته خپلو دندو ته ورستنيږي.
۷- د دار الايتامونو په برخه کې:
لکه چې خبر ياست د ښوونې او روزنې او لوړو زده کړو کميسيون تر ادارې لاندې مخکې دوه بابه دار الايتامونه موجود وو چې ښه معياري نصاب او د تعليم ،اخلاقو او تربيې منظم پروګرام د ټولو اسانتياوو سره يکې عملي دې ، سږ کال د يتيمانو د زياتوالي او د هغوی د تعليم او تربيې د ضرورت په خاطر دوه بابه نور دار الايتامونه هم د مخکنيو دار الايتامونو د پروګرام مطابق تأسيس شول چې تر اوسه په لومړيو مراحلو کې دي او د داخلي شمېر يې ورځ په ورځ زياتيږي ، ددې دار الايتامونو لپاره د درس او هستوګنې مناسب ځايونه او غوره اعاشه او نور ضرور تونه په نظر کې نيول شوي دي ، ښه تجربه لرونکي ، مسلکي ، مُشفق ، مهربانه او تقوی داره استاذان ور ته مقرر شوي دي ، چې د کميسيون د علمي کميټې لخوا جوړ شوی درې کلن نصاب او وروسته د ابتدائيه او متوسطه درجو پورې ښوونه ور ته کيږي ، چې په مجموع کې په دې دار الايتامونو کې په سوونو يتيمان د ليليه په ډول زده کړې کوي.
هو : تاسو په خپله پوښتنه کې د ستونزو يادونه وکړه په دې اړه بايد ووايم چې زمونږ اصلي ستونزه سخت امنيتي شرائط دي چې زمونږ د دين او وطن د دښمنانو لخوا په نورو تهديدونو سربيره زمونږ تعليمي ادارې هم په امن کې نه دي که مدرسه وي او که مکتب ، دار الحفاظ وي ، دار الايتام وي او که کليوالي ښوونځي د دښمن له ويرې او خطر څخه بيغمه نه دي ، هغوی زمونږ په امورو کې ډيرې ستونزې راپيدا کړې دي او له بلې خوا زمونږ اقتصادي مشکلات او ستونزې هم پريمانه دي چې مونږ يوازې د ملت او ديندراه او علم پالونکو مسلمانانو په مرسته دغه تعليمي بهير روان ساتلی دی .
**دوهمه پوښتنه:** څرنګه چې تاسو ته بهتره معلومه ده د کابل ګوډاګی رژيم او باداران يې هميشه دا تبليغات په کار اچوي چې د افغانستان اسلامي امارت د معارف ضد کړنلاره لري ، د ښوونې اوروزنې لپاره هيڅ برنامه او پلان نلري ، مکتبونه سوځوي او معلمان وژني او تهديدوي يې ، تاسې د دښمن د دغو تورونو او تبليغاتو په وړاندې څه توضيحات لرۍ ، اوکه په دې باب په مختصر ډول د اسلامي امارت د تعليم او تربيې کميسيون په عمومي تګلارې څه رڼا واچوئ ؟

**ځـــواب:** ستاسو ددې پوښتنې په ځواب کې باید ووایم چې: د دښمن دا ډول تبلیغات د دوی هغه زړه اوله کاره لویدلې حربه او وسله ده چې غوښتل یې د هغې په زور ځینې هغه ذهنیتونه چې له حقائقوڅخه لیرې پاتې دي همداسې په ابهام کې وساتي او یاځینې خالي ذهنونه د اسلامي امارت په ضد را وپاروي خو زه فکر کوم چې اوس دا ډول پوچ تبلیغات هیڅ اثر نه لري ځکه اوس دننه او د باندې افکار د واقعیتونو په موندلو سره په دې قانع شوي دي چې اسلامي امارت هغه نظام دی چې د ټولنې د ضرور تونواو غوښتنو په سر کې یې ښونې او روزنې ته ځای ور کړی ، د تعلیمي پالیسیو د پرمخ بیولو لپاره یې با صلاحیته کمیسیون ټاکلی ، د کمیسیون د کاري صلاحیتونواو طرزالعمل لپاره یې تعلیمي لائحه جوړه کړې ده چې په دغه لائحه کې د اسلامي امارت تعلیمي پالیسي خوراځر ګنده ده د نمونې په ډول د لائحې ځینو مادو ته چې د دا ډول تبلیغاتو پوره ځواب کېدی شي اشاره کوم:

په پنځمه (۵) ماده کې راغلي (د تعلیم او تربیې عالي کمیسیون مکلف دی چې د اوسني عصر د ژوند د ضرور تونو د پوره کېدو په منظور د افغان مجاهد ولس د بچیانو لپاره د عصري علومو د تعلیمي ادارو یعنې مکتبونو د جوړ لواو پاللو په منظور د امکاناتوپه تناسب جدي قدم واخلي).

په اتمه (۸) ماده کې راغلي دي (عالي کمیسیون مکلف دی چې د اولس بچیان د تشویق ،مهرباني او نیکې بلنې له لارې تعلیمي ادارو ته را وبولي ، زور زیاتی دې نه کوي.

په یواویایمه (۷۱) ماده کې راغلي (اسلامي امارت لاندې تعلیمي اداري په نظر کې لري:

دیني لیلیه مدرسې ، دار الحفاظونه ، کلیوالي نهاریه مدرسې ، د دیني علومو د تخصص اداري ،مکتبونه ، پوهنتونونه او دار الایتامونه ) .

په دواویایمه (۷۲) ماده کې راغلي (د پور ته ذکر شویو تعلیمي ادارو څخه حق د اولیت د کلیوالي نهاریه مدرسواو مکتبونو دی ).

د پور ته څو مادو په نظر کې نیولو سره د اسلامي امارت تعلیمي کړنلاره پوره څر ګندیږي نو هیڅ ته دا مجال نه پاتې کیږي چې د دښمن دغو پوچو او ړندو تبلیغاتو ته غوږ شي او د دښمن دا دعوی چې ګویا اسلامي امارت مکتبونه سوځوي او معلمان وژني او تهدیدوي یې هم له واقعیت څخه ډیره لیرې ده ځکه اسلامي امارت د ټولو ملي شتمنیو ساتنه د ځان فرض بولي او کړې یې ده.

په ټولو هغو ولایاتو کې چې زمونږ ښوونځي او مکاتب فعال دي لکه چې مخکې مو یاده کړه د نورو تعلیمي ادارو تر څنګ د هغو پالنه او ساتنه کوي ، د ښوونځیو فعالیت لپاره یې د امن فضاء رامنځ ته کړې ، زمونږ لخوا ور ته منظم پر ګرامونه ور کول کیږي ، تفتیش او نظارت یې کیږي د دغو ادارو منسوبین که استاذان دي او که شاګر ان ټول زمونږ خپل خلک او ددې ملت بچیان دي یو له بل سره مو پوره همکاري اوا ړیکې موجودې دي ، مطلب دا چې د دغو ادارو پالل هم اصولاً لکه چې د لائحې په مادو کې ذکر شول او هم عملاً لکه چې ټول خلک یې د سر په ستر ګو ویني زمونږ د کاري استقامتونو څخه دي.

هو دا یهود اونصاری او د هغوی لاسپوڅي اداره ده چې زمونږ د ملت ټول تعلیمي بنسټونه یې ونړول ، مسجدونه چې پر عبادت سربیره زمونږ د ملت او هرې اسلامي ټولنې د تعلیم لومړني مر کزونه دي بمبارد یا وسوځول ، دیني مدرسې یې په لومړي قدم کې تخریب کړې ، استاذان یې په شهادت ورسول آن تر دې چې ښوونځي او مکاتب چې د عصري علومو د زده کړې ځایونه دي او دوی یې په تبلیغاتو کې د فعالولو ډنډورې غږوي هم د خپلو شومو هدفونو لپاره تخریب او یا وتړل ،جنګي اډې یې ورنه جوړې کړې ، پوستې یې پکې فعالې کړې او یا یې هم د مجاهدینو په مخکې د سپر (ډال) په توګه استعمال کړې ، د دغو عصري تعلیمي ادارو او مکاتبو استاذان او معلمین یې هم په شهادت ورسول ، بندیان یې کړل او هر وخت د دوی لخوا تهدید سره مخامخ دي ، د دغو عصري تعلیمي ادارو ډیر زیات شاګر دان یې په ډیره بې رحمې او بې باکۍ سره په شهادت رسولي او ګڼ شمېر یې زخمیان کړې دي ، د داسې جنایتونو او تعلیمي ضد کړنو ژوندي مثالونه له هیچا څخه پټ نه دي ، د دغو عصري ادارو د استاذانو او شاګر دانو د شهادتونو او جراحتونو د پوره لست ذکر کولو ګنجایش دلته نشته خو مونږ به د نمونې په ډول د ځینو څخه یادونه وکړو.

۱: د میدان وردګو ولایت د جلریزو ولسوالي: د زیولات د لیسې یو متعلم سږ کال د رمضان المبارک په اوویشتمه (۲۷) نېټه د اربکیانو لخوا په شهادت ورسید او بل متعلم د اسد د میاشتې په پنځه ویشتمه (۲۵) نېټه زخمي او یوه ستر ګه یې له منځه لاړه او هم د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د متوسطې دوه شاګر دان په (۱۵\۶\۱۳۹۳ هـ ش) او د اسماعیل خیلو د متوسطې یو شاګرد زخمي کړل شول.

۲: میدان ښار مرکز: د خالد بن ولید د لیسې دوه شاګر دان په (۳۰\۵\۱۳۹۳هـ ش) په ډرون حمله کې په شهادت ورسیدل.

۳: د چک ولسوالي:

سر معلم خلیل الرحمن د حاجي محمد ولي زوی د سیبکی د بار ګزی د کلي اوسیدونکی د کریم شهید د لیسې استاذ او ورسره یې زوی عصمت الله د همدغې لیسې د لسم ټولګي زده کوونکی د یرغلګرو د چاپې پر مهال په خپل کور کې په شهادت ورسیدل ، همدارنګه د چک د بمبایي د عمر فاروق رضی الله عنه د لیسې پنځه شاګر دان په ډرون حملو کې په شهادت ورسیدل او همدغه لیسه دوه ځله د بې رحمه او علم دښمنه ملیشو لخوا تر هدف لاندې نیول شوې

چې پنځه نفره شاګردان پکې زخمیان او بیا یو پکې شهید شو، د انبوخاک د لیسې د نهم ټولګي زده کوونکی ، د مداد د کلي یواوسیدونکی د انستیتیوت شاګرد ، د شیخ یاسین د لیسی داتم ټولګي زده کوونکی ، د لنګر د لیسې زده کوونکی، او د کریم شهید د لیسې زده کوونکی د دغو وحشي ملیشو لخوا په شهادت ورسول شول .

۴: د جلګې ولسوالي : د میرانو د لیسې مدیر په (۱۱۷\۴\۱۳۹۳ه ش) چې کله د ځلور نیم میاشتني امتحان څخه راګرځیدلی ؤ په لاره کې د دغو ملیشو لخوا وویشتل شو او په شهادت ورسید او د یولسم ټولګي یو زده کوونکی هم د دوی لخوا وویشتل شو او شهید شو او د میرانو د کلي د دریم ټولګي زده کوونکی په (۱۲۹\۶\۱۳۹۳ه ش) په نارنجک باندې شهید شو .

۵: د جغتو ولسوالي : دلالکې د کلي اوسیدونکی د امام ابوحنیفه رحمه الله د لیسې د نهم ټولګي زده کوونکی په (۱۱\۶\۱۳۹۳هـ ش) او د ملاحافظ د کلي اوسیدونکی د منګلیو د لیسې زده کوونکی په (۱۱۱\۶\۱۳۹۳ه ش) په ډرون حملو کې په شهادت ورسیدل او د ګنده قول د کلي اوسیدونکی د همدغې کلي د لیسې د دولسم ټولګي زده کوونکی په (۱۲\۱۷\۱۳۹۳ه ش) په ډرون حمله کې زخمي شو.

۶: د سیداباد ولسوالي : په دغه ولسوالۍ کې یوائې سږ کال ټول ځلورویشت (۲۴) نفره د بیلا بیلو لیسوشاګردان په مختلفو تاریخونو کې په شهادت رسیدلي او دیارلس نفره زخمیان شوي دي چې د ټولو نومونه او ادرسونه زمونږ په کمیسیون کې موجود دي او دلیسو د نومونو او دشهادت او جراحت د تاریخونو په لحاظ په لاندې ډول دي :

دخالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۳\۱۷\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۱۵\۴\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۱۱\۴\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۲۰\۱۱\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۲۰\۱۲\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۱۰\۵\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۵\۱۳\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۵\۱۳\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۱۵\۱۳\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۱۵\۱۳\۱۳۹۳ه ش)
د خالد بن ولید د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۲۸\۴\۱۳۹۳ه ش)
د عمر ولي د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۵\۶\۱۳۹۳ه ش)
د عمر ولي د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۵\۶\۱۳۹۳ه ش)
د عمر ولي د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۱۵\۴\۱۳۹۳ه ش)
د عمر ولي د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۲۰\۴\۱۳۹۳ه ش)
د باغک د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۱۵\۴\۱۳۹۳ه ش)
د باغک د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۱۵\۴\۱۳۹۳ه ش)
د کندهار د پوهنتون محصل د شهادت نېټه (۱۱۰\۵\۱۳۹۳ه ش)
دباغک دلیسی شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۲۰\۸\۱۳۹۳ه ش)
دنور المشایخ د لیسې شاګرد ، د شهادت نېټه (۱۱۰\۶\۱۳۹۳ه ش)
د اوخی د لیسې شاګرد .
او درې تنه نور د انصارالمؤمنین د لیسې شاګردان
او لاندې شاګردان زخمیان شوي دي :
د عمرولی د لیسې زده کوونکی : د عمر ولی د لیسې زده کوونکی ، د زخمي کیدو نېټه (۱۱۰\۷\۱۳۹۳ه ش)



د چک دانستیتیوت زده کوونکی .
د خالد بن ولید د لیسې زده کوونکی ، د زخمي کېدو نېټه (۱۳۹۳/۷/۸ هـ ش)
د خالد بن ولید د لیسې زده کوونکی .
دخالد بن ولید د لیسې زده کوونکی . د خالد بن ولید د لیسې زده کوونکی ، د زخمي کېدو نېټه (۱۳۹۳/۷/۱۰ هـ ش)
د خالد بن ولید د لیسې زده کوونکی .
د باغک د لیسې زده کوونکی .
د انخی د لیسې زده کوونکی .
د انصار المؤمنین د لیسې زده کوونکی .
د انصار المؤمنین د لیسې زده کوونکی .
د ننګرهار د پوهنتون محصل .
په پېښور کې د شهاب الدین غوري د معهد څخه فارغ شوی زده کوونکی .
او د پوهنتونونو هغه محصلین او فارغین چې د صلیبي یرغلګرو او دهغوی د ګوډاګیانو لخوا په شهادت رسول شوي دي
یو شمېر یې د نمونې په توګه ذکر کوو:
د خوست پوهنتون د ډاکټرۍ د پوهنځي محصل ، د پکتیا ولایت د مرکز اوسیدونکی .
د خوست پوهنتون د تعلیم او تربیې د پوهنځي محصل ، د کندز ولایت د مرکز اوسیدونکی.
د خوست پوهنتون د حقوقو د پوهنځي محصل ، د میدان وردګو ولایت دسیداباد ولسوالۍ اوسیدونکی.
د خوست پوهنتون د شرعیاتو د پوهنځي محصل ، د پکتیا ولایت د جانیخیلو ولسوالۍ اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د انجینرۍ د پوهنځي محصل ، دلوګر ولایت د برکي برک ولسوالۍ اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د تعلیم او تربیې د پوهنځي محصل ، د لوګر ولایت د مرکز اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د انجینرۍ د پوهنځي محصل ، د لوګر ولایت د محمداغې ولسوالۍ اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د انجینرۍ د پوهنځي محصل ، د لوګر ولایت د مرکز اوسیدونکی .
د ننګرهار پوهنتون د انجینرۍ پوهنځي محصل ، د لوګر ولایت د پاتخواب اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د انجینرۍ د پوهنځي محصل ، د پکتیا ولایت د مرکز اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د شرعیاتو پوهنځي محصل ، د کابل ولایت اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د زراعت د پوهنځي محصل ، د لغمان ولایت د مرکز اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د زراعت پوهنځي محصل ، د ننګرهار ولایت اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د ډاکټرۍ د پوهنځي محصل ، د میدان وردګو ولایت دسیداباد ولسوالۍ اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د انجینرۍ پوهنځي محصل ، د پکتیا ولایت د څمکنیو ولسوالۍ اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د تعلیم او تربیې د پوهنځي محصل ، د ننګرهار ولایت اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د تعلیم او تربیې د پوهنځي محصل ، د پکتیا ولایت د مرکز اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د انجنرۍ پوهنځي محصل ، د لوګر ولایت د مرکز اوسیدونکی.
د ننګرهار پوهنتون د انجینرۍ د پوهنځي محصل ، د خوست ولایت د یعقوبي ولسوالۍ اوسیدونکی.
د پکتیا پوهنتون د شرعیاتو د پوهنځي محصل ، د پکتیا ولایت د مرکز اوسیدونکی.
د پکتیا پوهنتون د ډاکټرۍ د پوهنځي محصل ، د پکتیا ولایت د مرکز اوسیدونکی.
دپکتیا پوهنتون د انجینرۍ د پوهنځي محصل ، د ننګرهار ولایت د کوټ ولسوالۍ اوسیدونکی.
د کابل پوهنتون د حقوقو د پوهنځي محصل ، د خوست ولایت د علیشیرو ولسوالۍ اوسیدونکی.

**دریېمه پوښتنه:** د کابل رژیم د معارف چارواکي په ډېر شداومد دعوې لري چې د معارف لپاره یې زیات کار کړی ، معیاري تعلیمي نصاب یې جوړ کړی ، په میلونو هغه شاګردان چې له زدکړو بې برخې وو هغوی ته یې د عملي ښوونې او روزنې لپاره زمینه سازي کړې ، مکتبونه یې ورته جوړ کړي ، درسي کتابونه یې ورته رسولي دي ، تاسې د دغو دعوو اوغورو په باب څه تبصره لرئ ؟

**ځــــواب:** هو رښتیا هم د کابل چارواکي چې کله د (۱۳) کلونولاسته راوړنې نړۍ والو ته وړاندې کوي نوهمداخبره یې په سر کې ځای لري چې ګویا مکتبونه جوړ شوي ، شاګردان ورته جذب شوي ،او نصاب مو ورته رسولی او....) خو موږ وایوچې لومړی باید د هغوی څخه پوښتنه وشي چې هغه په ملیاردونو ډالره چې یوازې د معارف په نامه له نړۍ والوڅخه اخیستل شوي د دوی د موجوده کړنوسره اندول کېدی شي ؟او نړۍ والو ته هم وایو چې آیا د هغوی مرستو کوم ځای نیولی دی؟ حقیقت دادی چې هغوی یوازې په مرکزي سیمو کې او د ځینو ولایتونو په یو څو اطرافي سیمو کې مکتبونه پرانیستي دي هغه هم په ډېرو محدودو امکاناتو ، د هیواد زیاتره کلیوالي سیمې خو له دغو مرستوڅخه بیخي بې برخې پاتې دي .

ددوی د معارف اداره په ټولو ولایتونو کې د مکتبونو او ښوونځیو د فعالولو دعوه لري او نړۍ والو ته ښیي چې ګویا ښوونځي فعال دي خو په حقیقت کې هلته نه ښوونځي شته او نه کومه اداره ، نه کتاب شته اونه شاګرد. هسې د کاغذ پرمخ یې خپله شمیره پوره کړې تر څو له نړۍ والو څخه ډالر پرې راجلب کړي او خپل جیبونه پرې ډک کړي.

**څلورمه پوښتنه:** ډېر ځله اوریدل شوي چې د کابل رژیم په تعلیمي نصاب کې یو لړ داسې مواد درج او ځای پرځای شوي چې دیني معتقداتو، جهادي ارزښتونواوافغاني غرور ته پکې توهین شوی ، تاسې دغسې کوم صریح اسلام ضد ټکي لیدلي او د هغو د تشخیص لپاره موکوم علمي پلاوی ټاکلی ؟

**ځــــواب:** د ښوونې او روزنې او لوړو زده کړو کمیسیون د دوی د نصاب د کتنې او نظارت لپاره د دیني علماؤ او مسلکي کسانو یوه کمیټه و ټاکله تر څو د دوی نصاب وګوري او کمیسیون ته خپل راپور برابر کړي هماغه ؤچې نوموړې کمیټې د ښوونځیو ټول نصاب له اول ټولګي څخه نیولې بیا تر دولسم ټولګي پورې تر مطالعې لاندې ونیوو، محتوی او مضامین یې مطالعه کړل په نتیجه کې څرګنده شوه چې ځینې ښکاره شرعي ، جهادي او افغاني ضد نیمګړ تیاوې یې درلودې چې په لاندې ډول ورته اشاره کولی شو.

۱ - په ټول نصاب کې په شعوري ډول کوښښ شوی دی تر څو د جهاد کلمه ، مضمون او حکم پکې ذکر نه شي.

۲ - په نصاب کې د (قتل ناحق ، جنګ وغیره) تر عنوانو لاندې زیار ایستل شوی تر څو جهاد هم د جنګ په معنی تعبیر کړي او ترمنځ یې هیڅ توپیر نه دی کړی .

۳ -د (صلح) ترعنوان لاندې مضامین لیکل شوي او د صلح طرف ته تشویق او ترغیب بیان شوی خو دا توپیر ندی شوی چې صلح د چاسره او په کوموشرائطو کې او څوک به یې کوي ؟

۴ -د (تروریزم) ترعنوان لاندې مضامین لیکل شوي خو حقیقت یې ندی بیان شوی چې ترورېست څوک دی ؟

۵ - د (بشر دوستۍ او انسان دوستۍ ) یا (تساوي حقوق) تر عنوانو لاندې مضامین راغلي او شاګردان یې د انسانانو له یو بل سره دوستۍ ته هڅولي او داسې یې ښوولي چې انسانان په ټولوحقوقو کې سره یوشان دي د کافر او مسلمان توپیر یې د دوستۍ په حدودو کې ندی کړی .

۶ -د موسیقۍ او لهو لعب لوري ته تر مختلفو عنوانو لاندې شاګردان هڅول شوي دي تر څو موسیقي زده کړي .

۷ - د ښځو د آزادۍ لپاره یې کوښښ کړی دی تر څو ښځې د ژوندپه ټولو چارو کې د نارینه ووسره یوځای کار وکړي دستَر او حجاب مسئله یې له منځه وړې ده.

۸ - د (جرګې) تر عنوان لاندې یې افغاني دود او غرور ته ښکاره توهین اوسپکاوی کړی ، هغه فرمایشي جرګې چې لاسپوڅې اداري ته یې جواز ور کړی یایې د پردیو مداخلې ته قانونیت ور کړی دایې د افغانستان نمائنده جرګې بللي .

۹ - په نصاب کې ډېر ځله د غیر افغاني او کفري نړۍ مشهورو څیرو څخه ډېره یادونه شوې او په ډېر افتخار یې د هغوی تاریخ ته کتنه کړې ده .

۱۰ - د مېرمنو بې حجابه تصاویر ځای په ځای پکې درج شوي دي چې اخلاقي مفاسدو ته لمن وهل او هڅونه ده او داسې نور......

خو د دې ټولوسربېره درې نور مضمونونه ( کتابونه)

لکه : ۱- د ژوند مهار تونه ۲- مدني زده کړې ۳- فرهنګ ، دغه کتابونه له سره تر پایه د تعلیمي لړۍ سره سمون نه لري او بې ځایه مزخرفات پکې لیکل شوي چې له اصیل سوچه تعلیمي نصاب سره بیخي اړخ نه لګوي .

نوموړي پلاوي پور تنۍ نیمګړ تیاوې او خُرافات په ګوته کړل د هر ټولګي کتاب ، او د کتاب د صفحې په حواله یې یو فهرست (لړلیک) تیار کړ او کمیسیون ته یې وسپاره چې بیا د کمیسیون لخوا دلازمو هدایاتو، اصلاحاتواو لارښونوسره یوځای د هر ولایت تعلیمي مسئول ته وسپارل شو چې د هر ښوونځي اداري ته یو یو نقل وسپاري او بیا دغه اصلاحات عملاً تعقیب او وڅاري او د ښوونځیواستاذان او مسؤلین ور ته جدي متوجه کړي تر څو زموږ راتلونکی نسل او

اولادونه په داسې مرموزو او غولوونکو ویناوو بې لارې نه شي ، دغه راز اوس هم کله چې نوي کتابونه چاپیږي د کمیسیون لخوا کنټرول کیږي او هم مهاله د ښوونځیو ادارو ته خبر ورکول کیږي.

**پنځمه پوښتنه:** د دښمن د زهرجنو تبلیغاتو یو مهم ټکی دا دی چې اسلامي امارت صرف د دیني علومو پر اختیا او تعلیم ته زیات پام اړولی او یا یې اړوي ، د عصري علومو برخې ته کمه حقه توجه نکوي ، په دې هکله که څه معلومات راکړئ ؟

**ځواب:** ستاسو د دې پوښتنې ځواب د دوهمې پوښتنې په ځواب کې څرګند دی چې مونږ عصري علومو ته په خپلو تعلیمي پالیسیو او پروګرامونو کې پوره او کما حقه توجه کړې ده ، د تعلیمي لائحې ځینې مادې مونږ د تعلیمي تګلارې په توګه هلته ذکر کړې چې پوره وضاحت پکې موجود دی.

هو دیني علوم چې زمونږ او د هرې اسلامي ټولنې د عقیدې او ژوند بنسټ جوړوي دا د هر مسلمان او اسلامي اُمت دنده ده چې لومړی د دیني علومو پر مټ د ټولنې ټول دیني ، عقیدوي او اخلاقي اړخونه اصلاح وروسته بیا د عصري او معاشرتي علومو په مرسته د ټولنې مادي ترقي تر لاسه کړي ، غرض دا چې مونږ دواړو طرفونو ته بشپړه توجه کړې او د خپلو امکاناتو په ساحه کې یې پالنه کوو.

**شپږمه پوښتنه:** په داسې حال کې چې یرغلګر او نړیوال استکبار تنها د افغانستان د خاورې ، ولس او ملي شتمنیو په اشغال او لوټ پسې متې نه دي بډ وهلي ، بلکې مهمه ارزو یې دا ده چې نوی نسل په غربي روحیه و روزي ، فکر او ذهن یې له اسلام سره په واټن او بې تفاوتۍ کې وغورځوي ، ستاسې په فکر افغان ولس باید خپلو اولادونو ته څومره متوجه او د دښمن دغو دسیسو ته ځیر و وسي ؟

**ځواب:** رښتیا هم چې نړیوال یرغلګر په ځانګړې توګه یهود او نصاری چې د اسلام او مسلمانانو شعوري دښمنان دي او دښمني یې هم د دین او مذهب په اړه ده نوځکه تر هر څه مخکې دوی غواړي چې زمونږ راتلونکی نسل له خپل دین څخه بې خبر وساتي او یا یې منحرف او په غربي روحیه و روزي او دوی د دې هدف او موخې لپاره ښوونځي او تعلیمي ادارې د دعوت او جلب او جذب مناسب مرکزونه بولي ، زمونږ افغان مسلمان ملت باید ډیر دقیق متوجه وي په ځانګړې توګه هغو ښوونځیو او تعلیمي ادارو ته چې د غلامۍ ادارې د واک لاندې سیمو کې دي ، کله چې څوک خپل زوی او ورور دغو ادارو ته لیږي دغه څومهمې نکتې باید په پام کې ولري :

١ - د ښوونځي معلومات وکړي چې اداره یې د چا په لاس کې ده ؟ افغانان دي او که بهرنیان ؟

٢ - په ښوونځي کې کوم نصاب ویل کیږي ؟

٣ - د ښوونځي استاذان څوک دي ؟ آیا افغاني مسلمانان دي او که غرب مزاجه او غربي دعو تګر او یا پخواني کمونستان ؟

او هم باید د خپلو اولادونو له کوره تر ښوونځي او له ښوونځي تر کوره پوره پوره نظارت او مراقبت وکړي تر څو د دغو خبیثو او معاندو دښمنانو دغولونکو پلانونو ښکار نه شي.

**اوومه پوښتنه:** د ولایتونو او ولسوالیو په مرکزونو کې د موجودو تعلیمي ادارو او محصلینو سره مو اړیکې څرنګه دي؟

**ځواب:** د ولایتونو او ولسوالیو په مرکزونو کې چې کومې تعلیمي ادارې دي زمونږ د ولایتي او ولسوالیو د تعلیمي مسئولینو لخوا د هغوی سره د ځانګړو مقرراتو په چوکاټ کې رابطې او اړیکې شتون لري ، د استاذانو او شاګردانو سره لیدل او کتل کیږي ، د هغوی پر پروګرامونه تر نظارت لاندې نیول کیږي او زمونږ لخوا خپل اصلاحي پرګرامونه هغوی ته ور کول کیږي او هغوی یې دوخت او ځای د شرائطو سره سم عملي کوي حتی که څوک سرغړونه وکړي او ضرورت ولیدل شي هغه اداره بندولی هم شو.

**اتمه پوښتنه:** د لوړو زده کړو په برخه کې چې مسئولیت یې ستاسو ادارې پورې اړه لري تاسو کوم کارونه تر سره کړي او د راتلونکي لپاره ور ته کوم پلان لرئ ؟

**ځواب:** د دې موضوع په اړه مو د لومړۍ پوښتنې په ځواب کې په پنځمه (۵) ګڼه کې څه توضیحات درکړل خو بیا هم د یادونې وړ بولو چې لوړې زده کړې هم په موجوده شرائطو کې زمونږ د کمیسیون په کاري استقامتونو کې راځي نو لهذا کمیسیون خپله دنده بولي چې د لوړو زده کړو د اصلاح او پرمختګ لپاره جدي قدمونه واخلي او وده ور کړي خو څرنګه چې له یوې خوا جهادي شرائط دي او له بلې خوا دغه ادارې په غټو ښارونو او د دښمن تر واک لاندې سیمو کې دي نو د هغوی سره زمونږ روابط تر ځانګړو اصولو او مقرراتو لاندې تنظیم او پر مخ بیول کیږي ، د دغو ادارو سره د روابطو او پکې د کار کولو لپاره اوس پر یوه تګ لاره او طرز العمل باندې هم کار کیږي تر څو د هغې په رڼاکې د لوړو زده کړو سره ټولې تړلې چارې نورې هم په اسلامي او اصولي معیارونو تنظیم او برابرې شي ، د اوس لپاره د دغو ادارو د مسئولینو ، استاذانو او محصلینو سره زمونږ اړیکې شته او د بیلابیلو وسائلو او طریقو له لارې د هغوی د چارو نظارت کوو او په مناسبو او ضروري حالاتو کې د خپلو ټاکلو مسئولینو له لارې ورسره لیدل او کتل کوو ، د اسلامي امارت تعلیمي

پالیسي د خپلو ځانګړو لارو څخه وخت په وخت ور ته رسوو، د دوی ضرور تونه لکه د اړیکو وسائل او نور د دوی په واک کې ور کوو او د دغو تحصیلي مؤسساتو او ادارو محترم استاذان او مجاهد شاګردان زمونږ سره پوره همکاري لري او خپل تصامیم او مشورې مونږ سره شریکوي.

**نهمه پوښتنه:** د اشغال په تیرو دیارلسو (۱۳) کلونو کې چې کوم مجاهدین شهیدان شوي او بچیان یې بې سرپرسته پاته شوي د هغوی د تعلیم او تربیې او زده کړو د ترلاسه کولو لپاره مو تر اوسه پورې څه کړي؟

**ځواب:** د ټولو بې سرپرسته او بې وزله یتیمانو لپاره لکه چې خبر یاست مونږ مخکې دوه دارالایتامونه درلودل چې د دوه سوه او پنځوسو (۲۵۰) په شاوخوا کې یتیمانو پکې زده کړه کوله خو څرنګه چې د یتیمانو شمیر زیات وو او د ملک جهادي شرائطو ته په پام سره ورځ په ورځ دغه شمېره مخ په زیاتیدو وه نو ځکه د نورو دارالایتامونو د جوړیدو ضرورت ولیدل شو، زمونږ کمیسیون د اسلامي امارت د هدایت سره سم دوه نور دارالایتامونه په سږ کال کې د نوي تعلیمي کال د پیل څخه افتتاح کړل د دغو دارالایتامونو د تعلیمي کیفیت او څرنګوالي په اړه به ستاسو د معلوماتو لپاره څه توضیحات درکړم:

۱: د دوی ټوله تعلیمي او زده کړې دوره پنځه کاله ده درې کاله ابتدائي او تمهیدي صنفونه دي څلورم کال کې ابتدائیه او په پنځم کال کې متوسطه درجه ور ته ویل کیږي.

۲: د درې کالو ابتدائي صنفونو لپاره یو په زړه پورې معیاري نصاب د کمیسیون د علمي کمیټې د علماؤ او مسلکي کسانو لخوا جوړ شوی دی هغه ور ته په دغه درې کلونو کې تدریس کیږي، په دغه نصاب کې قاعده، قرآن کریم، تعلیم الاسلام، سیرت النبی صلی الله علیه وسلم، ریاضي، نبوي احادیث، پښتو او خط شامل دي.

۳: دوی ته هره ورځ په منظم ډول په ټاکلو وختونو کې د ورځني مهال ویش سره سم تربیه او د اخلاقو په اړه توصیه کیږي.

۴: د نظافت او پاکۍ اهتمام یې په پوره ډول سره کیږي.

۵: د شپې د تیرولو ټول سهولتونه او اسانتیاوې لکه اعاشه، بستره او نور لوازم ور ته برابر دي.

۶: ښه تقوی داره، مُشفق، مهربانه او مسلکي استاذان ور ته ټاکل شوي دي چې په درسي پروګرامونو بر سیره یې په شپه او ورځ کې نظارت او څارنه کوي.

۷: د جامو، لباس او پایزار اهتمام یې په داوړو اخترونو او نورو وختونو کې د کمیسیون لخوا کیږي.

۸: په رخصتیو کې د کور د تګ لپاره ترانسپورتي کرایه او خرچه ور کول کیږي او هم کله کله ور سره په کافي مقدار کې کومک هم کیږي.

**لسمه پوښتنه:** زمونږ د معلوماتو له مخې د هیواد په اکثرو اطرافي سیمو کې چې د تعلیم او تربیې کومې ښوونځۍ فعالې دي استاذان یې یوازې د مساجدو امامان دي، چې یوازې دیني مضامین شاګردانو ته وایي د نورو عصري مضامینو لپاره په ښوونځیو کې مسلکي استاذان نلري، ددې تشې د ډکولو لپاره څه پلان لرئ؟

**ځواب:** په دې اړه باید ووایم چې په ټولو هغو ولایاتو کې چې ښوونځي موجود دي په هغو کې په کافي شمیر کې مسلکي استاذان موجود دي البته یو شمیر دیني علماء مونږ په دغو ادارو کې د ځینو دیني مضامینو لپاره لکه قرآن کریم، دینیات، تعلیم الاسلام، تفسیر، حدیث، میراث، عقائد او فقهې لپاره چې د نصاب مهمه برخه جوړوي د ضرورت په اندازه ټاکلي دي او نور مضامین د مسلکي استاذانو لخوا تدریس کیږي، بیا هم که د کمیت یا کیفیت په لحاظ په ځینو ځایونو کې کومه نیمګړتیا موجوده وي په راتلونکي کې غواړو زمونږ د هغو نویو ځوانانو په ټاکلو سره چې له خپلو زده کړو فراغت تر لاسه کوي د مسلک سره سم د اسلامي معیارونو په نظر کې نیولو سره دغه تشه ډکه کړو.

**یوولسمه پوښتنه:** د تعلیم او تربیې د کمیسیون له لوري د کلیوالي ښوونځیو لپاره په یوه خاص نصاب کار روان ؤ، چې کار یې اوس په کوم پړاو کې ده او که راته وواياست څه وخت به د استفادې وړ وګرځي؟

**ځواب:** د کلیوالي مدارسو او ښوونځیو لپاره چې په کوم نصاب کار روان ؤ الحمدلله د هغه کار پای ته رسیدلی د مضامینو کمپوز او ترتیب یې بشپړ شوی دی خو سمدستي د وروستي کتنې لپاره علماؤ او شیوخو ته سپارل شوی دی تر څو د دوی له کتنې او پوره سمونې وروسته چاپ شي امید لرو چې د راتلونکي ۱۳۹۴ هـ ش کال لپاره به ګټې اخیستلو ته تیار شي.

**دولسمه پوښتنه:** د ښوونې او روزنې او لوړو زده کړو کمیسیون لخوا د مدارسو لپاره یو نصاب ترتیب شوی دی چې ټول مدارس یې په عملي کولو مکلف شوي دي د ځینو په باور اوس هم په دغه نصاب کې د پخوانیو مروجو فنونو لکه حکمت، فلسفې او منطق د کتابونو غوښنه ونده شته په داسې حال کې چې د وخت ضرورت اوس دیني او عقیدوي مسائلو او هم د نوي حکمت، ساینس، ټکنالوجۍ او طب خوا ته ډیر دی چې باید حالاتو ته په کتو سره طالبان د نوي شرائطو او ستونزو په مقابل کې وروزل شي نو په دغه نصاب کې دغو ضرورتونو ته څومره توجه شوې او د پخوا په پرتله څومره نوښت پکې راغلی دی؟

**ځـــواب:** په دې اړه باید ووایم چې په حقیقت کې د مدارسو لپاره د یومنظم نصاب د ترتیبولو او جوړولو اصلي سبب او علت همدغه د وخت ضرور تونه وو او ورسره په څنګ کې د ټولو مدارسو په درسي نظام کې توحید ، یو والی او نظم راوستل هم وو ، ځینې هغه نوښتونه او ځانګړ تیاوې چې په دغه نصاب کې رعایت شوي دي غواړم په لنډ ډول یې تاسې ته وړاندې کړم :

۱: د قرآن کریم دمشق ، تجوید ، ترجمې او تفسیر لپاره په منظم ډول په تدریج سره درجې ټاکل شوي دي مثلاً: په ابتدائیه ، متوسطه ، اولیٰ او ثانیه درجو کې مشق ، او تجوید او په خامسه ، سادسه او سابعه درجو کې یې ترجمه پای ته رسیږي او په تاسعه او عاشره درجو کې یې تفسیر ویل کیږي .

۲: حدیث شریف په اولی درجه کې پیل کیږي او بیا د څلورمې درجې څخه تر یوولسمې درجې پورې په هره درجه کې د اصول الحدیث سره یو ځای پر لپسې ویل کیږي .

۳: فقه او اصول الفقه د ابتدائیه درجې څخه پیل بیا تر ثامنه درجې پورې مسلسل په هره درجه کې ویل کیږي او بیا په عاشره درجه کې د دورې دورې په لړ کې پای ته رسیږي .

۴: عقائد په ثالثه درجه کې ، وروسته بیا په سابعه او تاسعه درجو کې ویل کیږي .

۵: د طب د زده کړې لپاره په تاسعه درجه کې اهتمام شوی تر څو ضروري علم الطب هم حاصل کړي .

۶: تاریخ په ځانګړې ډول د اسلامي تاریخ کتابونه هم په نصاب کې په مسلسل ډول په درجو کې ویشل شوي دي لکه په څلورمه ، پنځمه او اوومه درجه کې .

په همدې ترتیب د علم ادب ، اخلاق ،عروض او خط او انشاء اهتمام په نصاب کې شوی چې دغه د نصاب او درجو ترتیب د کمیت او کیفیت په لحاظ د پخوا په پر تله ډیر برابر او مؤثر دی او د حکمت او منطق کوم کتابونه چې په نصاب کې ځای شوي دي یو خو د علمي اصطلاحاتو لپاره ګټور دي او د استعداد لوړوالي او د استدلال قوت ورسره پیدا کیږي او بل ددغو کتابونو سره له پخوا څخه زمونږ علماء او طالبان دخپلې علمي سلسلې د پرمخ بیولو لپاره عادت شوي دي او تر اوسه یې دغه لړۍ په بریالیتوب سره تر دې ځایه رارسولې ده.

خو بیا هم دغه نصاب ته وخت په وخت کتنه کیږي سږ کال مونږ د علماؤ ، د مدارسو د شیوخو او استاذانو نظریات راټول کړي دي پر هغو کار روان دی چې سره توحید او تنظیم شي بیا به په پای کې د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو علمي بورډ ته وړاندې کیږي ، چې ددغه تجدید نظر په نتیجه کې به په نصاب کې مناسب تعدیل او تغییر رامنځ ته شي او دغه د بیا بیا کتنې سلسله به وخت پر وخت روانه وي تر څو د کمیت او کیفیت په لحاظ د وخت د غوښتنو سره سم لا ښه ګټور او په زړه پورې نصاب ولرو ان شاءالله .

**دیدارلسمه پوښتنه:** په پای کې که تاسو د اسلامي امارت د تعلیم ، تربیې او لوړو زده کړو د کمیسیون د مشر په حیث خپل ولس ، د مدارسو ، مکاتبو استاذانو او زده کونکو ته څه پیغام لرۍ مهرباني وکړئ.

**ځـــواب:** لومړی ستاسو څخه مننه کوم چې ما ته مو دا فرصت راکړ تر څو د خپل ولس ، د ټولو تعلیمي ادارو مسؤلینو ،منسوبینو ،استاذانو او شاګردانوسره خپلې هیلې شریکې کړم : د افغانستان اسلامي امارت د تعلیمي ارګان د مشر او مسؤل په توګه مې لومړۍ له خپل ولس څخه دا هیله ده چې خپلو اولادونو، وروڼو او د ملت ټولو بچیانو ته په ځانګړې توګه هغو ټولو بې سرپرسته یتیمانو ته چې پالنه یې د هر مسلمان فریضه ده د تعلیم زمینه برابره او خپلو نږدې تعلیمي ادارو ته واستوي ، په دې اړه دې غفلت او بې پروایي نکوي ، د مربوطه تعلیمي ادارو څارنه دې کوي ، په ځانګړې توګه د هغو تعلیمي ادارو چې د پر غلګرو او دهغوی دلاسپوڅې اداري تر واک لاندې سیمو کې دي تر څو خپل اولادونه له عقیدوي او اخلاقي انحراف څخه وساتي.

د تعلیمي اداراتو له استاذانو او مسؤلینو څخه هیله لرم تر څو خپل اسلامي ، جهادي او افغاني مسؤلیت په سمه توګه اداء کړي ، دغه د ملت بچیان چې ستاسو په اداراتو کې زده کړې کوي یو لوی اسلامي امانت وګڼئ ، د دوی سالمه ښوونه او روزنه او د هر ډول عقیدوي او اخلاقي انحراف او بې لارې توب څخه د دوی ساتنه ستاسو مسؤلیت دی ، تاسو داستاذانو په حیث په اسلام کې د یو لوی مقام څخه برخمن یاست هیله ده چې خپل مقام ته د درناوي په خاطر اسلامي ټولنې ته د ستر خدمت مصدر وګرځی .

او زده کوونکو ته زما داپیغام دی چې خپلو زده کړو ته متوجه و وسي ، د مسلمانو نیکو استاذانو څخه خپلې زده کړې وکړي ، پر مسلکي زده کړو سربیره خپلې عقیدې او اخلاقو ته ډیره پاملرنه وکړي ، د راتلونکې یوې پاکې اسلامي ټولنې د جوړولو په فکر کې و وسي ، بې ځایه هوسونه او غوښتنې پریږدي او هیڅکله خپل قیمتي وختونه ضائع نکړي .

# عراق ته دامریکایي پوځیانو دبیاراتګ موخې

شهید زوی

داسلامي دولت یا داعش دنویو پرمختګونو په لړ کې تېره اوونۍ یاني دروانې نومبر په وروستۍ نیمایي کې دځایي اوسېدونکو په مرسته موصل ؛ دصدام حسین پلارنی ښار تکریت او دشمال ځني نور کوچني ښارونه او قریې ترخپل کنترول لاندې راوستي؛یادو ښارونو او سیمو کې یو تعداد دولتي فوځیان وژل شوي او ژوندي هم نیول شویدي نور ټول د وړو او سترو مرکزونو نه په شخصي جامو کې تښتېدلي دي او ټول فوځي وسایل او مهمات آن ترخپلو فوځي یونیفورمونو پورې هر څه یې په خپلو مرکزونو کې پرېښي چې ټول داسلامي دولت جنګیالو لاسته ورغلي دي؛دیادو ښارونو او نورو سیمو دنیولو نه پس دنومبر په ۲۳ مې نېټې داسلامي دولت جنګیالود(تل عفر) نومې یو بل شمالي ښار دنیولو هڅې وکړې خو په نیولو یې ونه توانېدل؛دبغداد ادارې ویلي چې دداعش جنګیالو دفوځ نه دوسلو یو ستر ډیپو نیولی و چې په همدې ډیپو کې ددوئ لاس ته ورغلې سپکې او درنې وسلې یې دتل عفر دنیولو لپاره ددولتي فوځ پرضد کارولي دي ؛ دښار مرکزي روغتون له ټپیانو ډک شویدی او پکې دنورو ټپیانو دداخلولو ځای نشته.

دبغداد ادارې دعوی کړیده چې دیادو شمالي ښارونو په تازه نښتو کې یې په سونو مخالیفین وژلي دي خو ددې دعوې پخلی دازادو رسنیو له لورې ندی شوی او نه هم دولت دخپل یو مخالف دوژلو ثبوت وړاندې کړیدی.

هو ! برعکس داسلامي دولت جنګیالو پدې جنګونو کې دژوندي نیول شویو ګڼو فوځیانو دډله ایزو وژنو عکسونه خپاره کړیدي؛پدې عکسونو کې لیدل کېږي چې دګڼو نیول شویو دولتي فوځیانو لاسونه شاته تړل شویدي ؛دیوې کندې په غاړه په قطار ودرول شویدي او داسلامي دولت نقاب پوشو جنګیالو ورته دخپلو ټوپکونو شپېلۍ راړولې دي.

داعش بغداد ته ورو ورو ځان ورنږدې کوي دبغداد نیول به یې په عراق کې یو ستر هدف وي او دنیولو حوصله یې هم لري؛حالاتو ته په پام سره په لنډ وخت کې دبغداد نیول ګران ښکاري خووېره یې شته ؛ په بغداد کې ډېر دبې اطمینانۍ کیفیت دی؛ دخوراکي او اړتیا وړ نورو توکیو نرخونه ډېر پورته شویدي؛بغدادیان په

دولتي فوځيانو بې اعتماده دي ؛يکې دمجاهدينو دمقابلې توان نه وينې اودلته دا وېره په ډېر قوت مخ په خپرېدو ده چې يوه نه يوه ورځ به داسلامي دولت جنګيالي په بغداد داسې درنده حمله کوي چې له امله به يې ددې ښار اوسېدونکو ته ډېر ستر ځاني او مالي تاوانونه ورسېږي.

داسلامي دولت دنويو پرمختګونو ترڅنګ ددښمن له لورې هم نوي اقدامات ترسره شويدي؛دداعش په مقابل کې دامريکا په مشرۍ کې جوړ شوي اتحاد ته کاناډا هم عملاً ورګډه شوه؛رسنيو دا خبر خپور کړ چې دکاناډا جنګي طيارو په ړومبي ځل په عراق کې دداعش په مرکزونو بمباري وکړه ؛ وروسته بيا دکاناډا ددفاع وزير راب نکلسن هم ومنله چې جنګي طيارو يې دداعش مرکزونه بمبار کړيدي ؛هغه وويل چې دکاناډا دهوائي ځواکونو سي ايف ۱۸ ډوله جنګي طيارو دخپلو اتحاديانو سره دتماس نه پس په فلوجي کې دداعش پرمرکزونو ليزرګايډ درانده بمونه وغورځول خو دځاني تلفاتو په اړه معلومات ندي ترلاسه شوي.

مياشت دمخه چې دکاناډا پارلمان دداعش پرضد جوړ شوي نوي اتحاد کې دشامليدو منظوري ورکړې وه اوس پدې جنګ کې ددې هيواد دعملي ګډون خبر څه ډېرلوی او داهميت وړ خبر نه ګڼل کېږي ؛ کوم خبر چې دټولې نړۍ توجو يې ځانته راجلب کړې هغه عراق ته دامريکايي فوځونو دبيا راتللو خبر دی.

امريکا چې دداعش په مقابل کې عراقي فوځ ته دسلامشورو ورکولو په پلمه يې لاوارد مخه په بغداد او الانبار کې ۱۵۰۰ فوځيان ځای پرځای کړيدي اوس يې دعراق لومړی وزير حيدر العبادي باندې فشار راوړيدی چې ګڼ شمېر نورو امريکايي ځواکونو ته دې عراق ته دورننوتلو اجازه ورکړي؛دنوم دنه څرګندولو په شرط دعراق دپارلمان يوغړي (( اليوم الثاني )) نومې عربي رسنۍ ته ويلي دي چې دعراق لومړی وزير حيدر العبادي دامريکا ترسخت فشار لاندې دی ترڅو دمشاورينو په نوم عراق ته دګڼو نورو امريکايي فوځيانو دورتللو اجازه ورکړي.

پوښتنه دا ده چې هغه امريکا چې په عراق کې ديو اوږد ، سترې کونکي او له ځاني او مالي تاوانونو ډک جنګ کې دشرمونکې ناکامۍ نه پس يې ددې جنګ ودرول او ددې هيواد نه دخپلو فوځيانو ويستل اعلان کړي اوس بيا ولې دې هېواد ته دفوځيانو دراليږدولو او احتمالاً دلته په ځمکني جنګ کې دخپلو فوځيانو راښکېلولو ته بيا ولې زړه ښه کوي؟

ددې جواب څه جوړه فلسفه نه لري؛نه داسې ګران دی چې ډېر سوچ فکر وغواړي او نه هم داسې دی چې ثوک دې ورسره خپل مخالفت ښکاره کړي ؛ بس سيده ساده خبره دا ده چې امريکا دنړۍ ترټولو ستر خودغرضه،ښکېلاکګر او اشغالګر هيواد دی؛هر اقدام او هره پرېکړه يې ښکېلاکي اهدافو ته درسېدلو لپاره وي ؛ ددې ترڅنګ امريکا په نړۍ کې تربل هر هيواد زيات تېل مصرفونکی او تېل واردونکی هيواد دی؛دامريکا فوځ دنړۍ دبل هر هيواد دفوځ نه زيات تېل کاروي؛که دامريکا ددفاع وزارت دتېلو مصارف دنړۍ دهېوادونو دتېلو مصارفو سره پرتله شي نو ددفاع وزارت په **۳۵**م ځای کې قرار لري يانې دنړۍ د **۳۴** سترو هېوادونو نه پرته دنړۍ دبل يو هېواد دتېلو ټول مصارف هم يوائې دامريکا ددفاع وزارت دتېلو مصارفو ته نه رسېږي؛يوائې په **۲۰۰۳** کال کې امريکا ته ۱۱۰ ملياردو ډالرو تېل راوارد شوي وو.

ددې ترڅنګ چې تېل دامريکا ډېره لويه اړتيا ده دټولې نړۍ په صنعت او تجارت کې هم مرکزي ونډه دتېلو ده او دډالر ارزښت هم په نړۍ کې له همدې امله دی چې دتېلو پېرل او پلورل پرې کېږي نو ځکه دامريکا په تجارت او خارجه پاليسۍ کې تېل مرکزي رول لوبوي او په نړۍ کې دامريکا جنګونه هم دهمدې تېلو او غازو په ټولو زېرمو دقبضې لپاره دي ؛دنړۍ دتېلو په زېرمو چې دامريکا قبضه څومره

کمزورې کېږي هغو مره به د امريکا حيثيت ته تاوان رسېږي، دډالر قدر بــه کمېــږي او ديــورو او دچــين دکرنسۍ يوآن سره به دتېلو دنرخ دترل کېدو خطر ډېرېږي نـو ځکـه امريکا جنګونه هم په هماغو سيمو مسلط کړيدي چرتـه چې دتېلو او غــازو پراخــه زېرمــې دي؛ پــه افغانستان ديرغل دنورو اهدافو ترڅنګ يـو سـتر هـدف دا و چې پخپله دافغانستان او منځنۍ آسيا دتېلــو او غــازو ســترې زېرمــې دامريکا ترقبضې لاندې راشي خو چې عـراق دنړۍ په سطحه دوهم هغــه هېــواد و چــې دتېلـو سـترې زېرمې يې لرلې؛دزېرمو نه يې په ډېر کم مصرف تېل راويستل کېدل او دمنځنۍ آسيا په نسبت نړيوال مارکيټ تــه ډېــر نــږدې و نــو پــه افغانستان کې دجنګ پايلو تـه لـه انتظار وړاندې امريکا پدې هېواد هم يرغـل وکـړ او دصدام حسـين اداره يې ددې لپاره رنګه کړه چې دلتهد خپلې خوښې اداره رامنځتـه کـړي ؛خپـل فـوځ د تـل لپـاره دلتـه مېشـت کـړي او نـه يـوازې دعـراق بلکې دټول منځني ختيځ دتېلو پـه زېرمو يې قبضه راشي چې همدا بـه يې بيـا پـه ټولې نړۍ دغلبې سبب وي؛پــه عــراق کــې دســترو اډو جـوړول دهمـدې خبـرې ډېـر سـتر دليل دی.

خو دا چې په عراق کې امريکا او متحدين يې دمجاهدينو دډېر ستر مقاومت سره مخامخ او پدې هيـواد کـې يې ډېـر ځـاني او مـالي تلفـات ولېـدل نـو خپـل ټـول پلانونه يې تطبيق نه کړای شول خو په عراق کې په تمـامو معنـو دلاسپوڅې ادارې او دې ادارې ته د**۵** سوه زرو نه دزيات فوځ په جوړولو بريالی شوه.

امريکا ګومان کاوه چې دمجاهدينو مقابله به په ډېـرې اسانۍ ددوئ پـه لاس جوړه شوې هغه اردو وکړای شي چې قاطع اکثريت پکې دشيعه ګانو دی نو ځکـه يې خپل فوځونه دعراق له ښارونو وويستل؛دامريکايانو پـه وينـا دعـراق دښـارونو نـه ويستل شوي ټول فوځيان يې خپل هيـواد تـه ستانه شويدي يوازې **۱۲** زره فـوځيـان يې په عراق کې دخپل سفارت او دامريکايې قراردادينو دحفاظت لپاره په عراق کې پـه خپلو اډو کې ساتلي دي.

امريکا دا کار ددې لپاره وکړ چې شوم اهداف يې پوره شي او دځـاني تلفـاتو لړۍ يې بنده شي ؛داچې ګوډاګۍ اداره او دامريکا پـه لاس جوړه شوې اردو دامريکا ګټو ته وفاداره وه نو امريکا پـه خپـل پلان کې تر ډېـره حده بريـالی وه خو دامريکا او لاسپوڅو له بده مرغه چې په عراق کې هغه داعش سر راپورتـه کـړ چې پـه مقابل کې يې دعراق فوځ شکست وخوړ، ستر ښـارونه ګڼ فوځي تأسيسـات او دتېلو دتصفې مرکزونـه يې ترې ونيـول او داردو پـه جوړولـو دامريکـا ټولـه خـوارې او مصـارف پـه سيند لاهو شول.

په عراق کې دامريکا ټوله پانګونه دخطر سره مخامخ شوه نـو ځکـه يې دداعش پرضد ديو شمېر غربي او عربي هېوادونو اتحاد رامنځته کړ او هوايي درندې حملې يې پـرې پيـل کـړې خـو چې هـوايي بريـدونو دداعش دپرمختـګ لاړ ونـه نيولـه نو امريکا اوس دداعش دپرمختـګ دمخنيوي يـو بل ناکـام کوښښ کوي؛غـواړي چې دعراق مورال بـايللي فـوځ تـه نوې حوصله ورکړي او پـه هر قيمت چې وي دداعش مقابلې ته يې ودروي نو ځکه دجنګ نږدې ساحو تـه ځې ترڅو ګوډاګۍ اردو ترشا دامريکـايې فوځيـانو دوجود ډاډ ترلاسـه او تريـو حـده پـه ډاډه زړه دمجاهـدينو پـه مقابل کې وجنګېږي چې دا دامريکا ناکامه هڅه ده.لاسپوڅي اردو بـه هيڅ حوصله ونه مومي خوبرعکس به دمجاهدينو حوصلې نورې هم لوړې شي؛پـه ولس کې بـه يې تائيد او دهېواد نه بهر مسلمانانو کې به يې محبوبيت زيات شي چې ورسره بـه يې دفتحو بهير نور هم ګړندی شي ؛نړۍ ته به دامريکا دپاليسيو ناکامي ښه روښانه شي او داخبره به يې يقين تـه پرېوځي چې دامريکا حرص وړې خوی او داشغال فکر هغه دخطا دپاسه خطا ته اړباسي نو ځکه له يوې سوړې څوځلې چيچل کېږي.

لیکنه: ملا احمدالله وثیق

# د شهید ملا روزي خان عاکف

## ژوند او کارنامو ته کتنه

د اداري یادونه:

د ملا احمدالله وثیق لخوا ترتیب شوي د شهید ملا روزي خان عاکف سوانح خورا اوږده او مفصل و، چې د مجلې محدود حجم یې د بشپړ نشر توان نه درلوده، له همدې امله مو سوانح تر یوه حده مختصر کړ چې اوس یې هماغه مختصر شوی متن چاپ ته سپارو.

### زوکړه او زده کړې یې

شهید ملا روزي خان عاکف په کال (۱۳۵۴ هـ ش) کې د زابل ولایت د نوبهار ولسوالۍ د مشیزو په کلي کې د حاجي صالح محمد په دینداره او جهادي کورنۍ کې دې فاني نړۍ ته سترګې پرانیستې، لومړنۍ زده کړې یې په خپله سیمه کې د کلي پر ملا امام پیل کړې وروسته د زابل د شاه جوی ولسوالي د موسی زو او ګاګرۍ په سیمو کې په زده کړو بوخت شو، د نورو زده کړو لپاره یې د پاکستان د بلوچستان ایالت د کوټې ښار ته سفر وکړ هلته یې په مختلفو دیني مدرسو کې له جیدو علماء کرامو څخه زده کړې ترلاسه کړې.

په ۱۹۹۴ کال کې چې د شر او فساد په ضد د طالبانو اسلامي تحریک پیل شو، ملا روزي خان چې لا له وړکتوبه یې له جهاد سره مینه درلوده، له طالبانو سره ملګری شو له همدې امله یې زده کړې نیمګړې پاتې شوې، نوموړی د شهادت تر وخته په جهادي فعالیتونو کې مصروف پاتې شو او تر اخره یې فرصت ونه موند چې خپلې ناتمامې زده کړې تمامې کړې.

### د طالبانو په اسلامي تحریک کې شمولیت او مبارزه یې:

په ۱۹۹۴ میلادي کال کې هغه مهال چې په افغانستان کې د ټولنیز هرج و مرج او فساد د ورکولو په موخه د طالبانو اسلامي تحریک قیام وکړ، شهید ملا رزوي خان عاکف د غه مهال تازه ځوانۍ ته رسیدلی وو، چې له جهاد او خدمت سره د زیاتې مینې له امله د طالبانو له یوه ګروپ سره ملګری شو، لومړی د کندهار مرکز ته لاړ او له هغه ځایه د طالبانو په تشکیل کې د شاولیکوټ ولسوالۍ ته ولاړ او هلته یې د ملا عبدالرحمن تر مشرۍ لاندې په وسلوال جهاد پیل وکړ، د کندهار ولایت د بشپړې فتحې وروسته نوموړی په مختلفو وختونو کې له مجاهدینو سره یو ځای د ګرشک، دلارام، فراه رود او همداسې د فراه ولایت د آب خورما سیمې په سختو جګړو کې یې برخه واخیسته، نوموړي په یادو جګړو کې د خپل شهامت او د دښمن په وړاندې د میړانې او دلاورۍ په ښودلو سره د مجاهدینو ترمنځ د یوه زړور او مدبر مجاهد په حیث مطرح شو او د هغه مهال د جنګ د لومړیو کرښو قومندانانو شهید ملا محمد اخند، شهید ملا رحمت الله اخند او نورو د اعتماد او توجه وړ وګرځید.

دجنوب لویدځو ولایاتو په استقامت کې دجنګ په لومړیو کرښو کې له خدمت ترسره کولو بعد نوموړی له اوږدې مسافرۍ وروسته په زابل ولایت کې خپل کور ته راستون شو له خپلو قریبانو سره دلږ وخت تیرولو وروسته نوموړی دخپلې ولسوالۍ (نوبهار) له مجاهدینو سره یوځای په تشکیل کې دمیدان ښار پر لوردجنګ لومړیو لیکوته ولاړ.

هغه مهال چې طالبان دمیدان وردګ ولایت په مرکز میدان ښار کې دشر او فساد له ټوپکیانو سره په جګړه بوخت وو دجګړې په لومړۍ دفاعي کرښه کې ترټولو ستراتیژیکه نقطه او مهمه امنیتي پوسته د(کوه کرغ )سنګر وو چې ساتل یې ډیرمشکل او خطرناک وو ،د کوه کرغ پوسته به همیشه ددښمن ترسختو ګذارونو او مخامخ تعرضونو لاندې وه ،شهید ملا روزي خان دخپلو ملګرو په شمول ددې مهم سنګر په ساتلو کې ډیر دپام وړ رول درلود ، دکوه کرغ پوسته په داسې یوه موقعیت کې قرار درلود چې کله به مجاهدینو دې پوستې ته اکمالات کول دښمن په ډیره اسانۍ سره په رسا توګه ویشتلای شوای، له همدې امله دورځې ډیر کم له دې لارې دمواد او انتقال ترسره کیده ،خو ملا روزي خان په جرأت او میړانه رښا ورغ یادې پوستې ته دباپور(ډاټسن ) په مټ اکمالات کول. نوموړي دمیدان ښار په کوه کرغ ،جلریز او ارغندۍ سیمو په سختو جګړو کې برخه واخیسته ،او کله چې په **۱۳۷۵**هـ ش کال په مني کې دکابل دنیو لو لپاره له دوو استقامتونو(جلال اباد او میدان ښار ) څخه عملیات پیل شول شهید ملا روزي خان عاکف دهغو مجاهدینو په تشکیل کې وو چې دارغندۍ له لارې دکابل ښار ته ننوتل.

دکابل له سترې فتحې وروسته مجاهدین دپروان ولایت په لور وخوځیدل ،شهید عاکف چې څو میاشتې مسلسل یې د جهاد په لومړنیو کرښو کې تېرې وې، دځه وخت استراحت کولو لپاره خپل کور ته دتلو اراده وکړه ،دشهید عاکف نژدې ملګری ملا عبدالاحد جهانګیروال وایي ،شهید عاکف له کابله لومړی کندهار ته راغی، په دې وخت کې په پروان کې دمخالفینو له لوري شدید تعرضونه پیل شول طالبانو له پروان نه عقب نشیني وکړه، او دکابل ښار حدودو ته جګړه راورسیده ،دشهید عاکف چې کله په کندهار کې له دې وضعیت څخه خبر شو د مسؤلیت داحساس له مخې یې کور ته تګ پریښود ،په کندهار کې له یوې شپې تیرولو وروسته بیرته دکابل په لور حرکت وکړ او دجنګ لومړۍ کرښې ته ولاړ.

دکابل له فتحې څه موده وروسته نوموړی دقرغې داتمې فرقې په تشکیلاتو کې چې قومنداني یې د ملا امیرخان حقاني په غاړه وه جهادي خدمت پیل کړ چې ډیر وخت به په شمالي کې دبګرام په استقامت دجنګ دلومړۍ کرښې دمهمو نقطو دساتلو او نیولو په عملیاتو کې بوخت و.

په **۱۹۹۷** میلادي کال چې کله د طالبانو یو ستر لښکر د سالنګ په تونل د شمال خواته ووت ، بغلان او کندز یې ونیول، ملاروزي خان عاکف په همدې عملیاتو کې هم برخوال و ، وروسته چې کله همدغه مجاهدین په پلخمري اوکندز کې محاصره شول نوموړي په ډیر متانت له خپلو نورو ملګرو سره یوځای ددښمن په وړاندې مقاومت وکړ، په دې وخت کې **۱۷** ځله یو په بل پسې ددښمن له لوري قوي تعرضونه وشول چې د ټولو په دفاع کې ملا روزي خان له نورو مجاهدینو سره یوځای برخه درلوده او مهم رول یې لوباوه. سلیمان اغا بهیر کیسه کوي، دپلخمري درباتک په سیمه کې دښمن قوي تعرض وکړ، یوشمیر مجاهدین ددښمن په منځ کې محاصره پاته شول، ملا روزي خان چې دا حالت ولید ،د مرمیو په باران کې یې خپل بایفور موټر مخامخ ددښمن په عسکروروزغلاوه او ددښمن په منځ کې یې جګړه پیل کړه، محاصره ماته شوه دجګړې په میدان ددښمن د**۱۸** تنو جسدونه پاته شول او وسلې یې غنیمت شوې.

د شمال له فتحې وروسته نوموړي په بلخ کې د یوې ۸۰۰ کسیزې ضربتي قطعې د مشر په حیث دنده اجراء کوله چې د مخالفینو دغلچکې بریدونه مخنیوی یې کاوه، ملا اسدالله واسروایي: مخالفینو د بلخ او سمنګانو له جنوبي غرنیو سیمو غلچکي بریدونه کول، خو مجاهدینو به په ډیر سرعت سره دفع کول، د همدې ساحې په شولګره، دره صوف، آق کوپرک او نورو سیمو په په دفاعي جګړو کې د امریکایي یرغل او بمبارونو د پیل ترمهاله ملا روزي خان اخند د یوه فعال مسؤل په حیث برخه درلوده.

### د امریکایانو یرغل او په وړاندې یې مسلح جهاد

د ۲۰۰۱ میلادي کال د روژې په میاشت کې د اسلامي امارت د مجاهدینو ترعقب نشینۍ وروسته چې له اکثرو سیمو مجاهدین ووتل ملا روزي خان عاکف هغه مهال هم په خپله سیمه کې فعال پاته شو له خپلو مسلحو مجاهدینو سره یوځای په جهادي فعالیتونو او دخپلو اسلحو او پوځي وسایطو په خوندي کولو او ساتلو بوخت وو، ، هغه مهال مې شهید ملا روزي خان عاکف ولید دخپلو وسایلو په اړه یې راته داسې وویل: ((په دې وروستیو کې مې لوی ملاصاحب (امیرالمومنین ملا محمدعمرمجاهد) ولید هدایت یې راته وکړ چې وس دي کیږي یو ټوپک لا هم چاته ورنکړې نور ته پوه شه او کار دي)، دملا صاحب دامر مطابق مې الحمدالله ټول پوځي وسایل اووسایط خوندي کړي او دوخت انتظار کوم)). راقم الحروف

۲۰۰۲م کال په افغانستان د امریکایي یرغل لومړنی کال و، دا کال د سختو مایوسیو، خپګانونو او مصائبو کال و، امریکایي یرغل په اوج او موج کې و، په ځمکې آن تر کلیو او اطرافي سیمو پورې دیرغلګرو ازادانه ګزمې ګرځیدې او د اسمان مخ د امریکایي الوتکو ګشت و ګزار نیولی و، کفري ایتلاف خپل ټول پوځي زور نمایش ته وړاندې کړی و، او اولس د سخت هیجان، مایوسۍ او حیرانتیا سره مخامخ و.

خو په هماغو امتحاني شیبو کې د هیواد په ګوټ ګوټ کې یو شمیر باعزمه زلمیو د حوادثو له سیلاب سره مقابله وکړه، عزم یې متزلزل نه شو او د خپل جهادي مسیر دتعقیب او بیا سمبالتیا لپاره لاس په کار شول، په دې زلمیو کې په زابل ولایت کې ملا روزي خان عاکف هم و، چې دامریکایي یرغل په وړاندې له مقدمو جهادي مخکښانو څخه شمیرل کیږي.

ملا سلیمان اغا بهیر چې د اشغال په وړاندې د وسلوالې مبارزې په پیل کې له ملا روزي خان سره ملګری وو وایي، دامریکایانو لخوا دافغانستان داشغال په لومړیو کې یوه ورځ حاجي ملا رزوي خان یو شمیر مخور او بانفوذه کسان راغونډ کړل او له خپلې جهادي ارادې یې خبر کړل وروسته یې له مجلس نه وغوښتل چې په دې اړه ستاسو څه نظر دي، دمجلس له یوه سر نه نظرونه پیل شول او تر پایه ورسیدل اکثریت په دې نظر وو چې اوس دستي دوسلوال جهاد لپاره زمینه نه ده مساعده دمجلس د وروستي کس دنظر تر اوریدلو وروسته ملا روزي خان ماته مخ را واړاوه چې ستا څه نظر دی، زه چې دمجلس دبرخوالو مایوس کن نظرونو زړه نازړه کړی وم چندان مثبت جواب مې ورنکړ، ملاروزي خان کرار وخندل او راته یې وویل، پوښتنه کوم، چې نور هیڅ ثوک نه وي راسره او زه په یوازې تن راولاړشم زموږ وطن ته دراغلو غاصبو کفارو په مقابل کې دا خپل سر قرباني کړم شهید بلل کیږم؟ زما مرګ خو به نه خرابیږي؟ ما ورته وویل نه هیڅ کله نه. نوموړي سم دستي خپل ټوپک اوږې ته کړ له مجلس نه یې اجازه راواخیسته او ماته یې ویل راځه، په موټر سایکل سپاره شولو ترښه ډیره مو هیڅ ږغ نه وو وروسته نوموړي دراتلونکو پلانونو په اړه بحث پیل کړ.

ملا روزي خان عاکف ترټولو لومړی وسلوال برید د۲۰۰۳م کال په اوایلو کې دزابل ولایت دنوبهار ولسوالۍ په مرکز ترسره کړ، ولسوالي یې په بشپړه توګه فتح

کړه ګڼ شمیر وسایل یې په غنیمت ونیول، له دې کامیاب برید وروسته دښمن غوښتل چې دنوبهار ولسوالي بیرته ونیسي په سهار یې دزابل له مرکز قلات او کندهار ولایت نه ستره قوه دنوبهار ولسوالۍ په لور راغله، مجاهدینو دسپیره سنګ په سیمه کې ورته کمین ونیو، ټوله قوه یې بیرته په شاه کړه او دولسوالۍ مرکز ته ونه رسیدل.دا په زابل او ګاونډیو ولایتونو کې ترټول لومړی وسلوال برید او بریا وه چې مجاهدینو ترلاسه کړه.دوهم برید دسپیرسنګ په سیمه کې دګوډاګۍ اداري په عسکرو ترسره شو ، څو ورځې وروسته دسرخکان دلودینو په سیمه کې د زابل دامنیه قومندانۍ پر عسکرو وسلوال برید ترسره شو چې په نتیجه کې یې یو عسکروژل شو دعبدالخالق په نوم یو قومندان ژوندی ونیول شو.دې بریدونو په خپل وخت کې دحالاتو نامساعدتیا ته په کتو خورا ډیر اهمیت درلود ،ځکه په دې سره په سیمه کې دمجاهدینو موجودیت ثابت شواو ددښمن غرور یې ختم کړ هغه ډار او دهشت چې په سیمه خپور وو دخلګو له زړونو ووتی.دې غیرمتوقعه پېښو ددښمن پښې ولړزولې، هغو سیمو ته چې به عسکر پهډیر اطمنان تلل مخه یې ونیول شوه.

په ۲۰۰۳ میلادي کال کې دکابل کندهار په لویه لار دتازي په سیمه دګوډاګیو عسکرو په قوي پوسته دشپې لمخې پراخ وسلوال برید ترسره شو ، په دې حمله کې دشهید ملا روزي خان ترځنګ دزابل یوشمیر جهادي قومندانو (شهید ملا محمدګل بشیر ،شهید ملا نذیراخند او ملا احمد الله منصور )هم برخه درلوده دبرید عمومي قومنده دشهید ملا روزي خان په غاړه وه .اسد الله واسر چې په دې حمله کې له ملا روزي خان سره ملګری وو وایي، هغه شپه حاجي صاحب (ملا روزي خان ) مجاهدین په دریو برخو تشکیل کړل یوه ډله مجاهدین په کمین کې وه دوهمه ډله د وسائطو او شاته دوتلو دلارې دحفاظت لپاره وګمارل شوه دریمه ډله پر پوسته باندې دتعرض لپاره تعین شوه چې ددې وروستي ډلې مشري د ملا روزیخان په غاړه ، لومړی څو ملګري پوستې ته ډیر نژدې ورغلل او د بي ایم یک مرمۍ یې پوستې ته نصب او فیر کړه مرمۍ په خپل هدف رسا ولګیده ، له دې سره سم مجاهدینو پر پوسته تعرض پیل کړ، کله چې موږ پوستې ته ورسیدو ملا روزي خان عاکف تر موږ مخکې پوستې ته رسیدلی و وروسته دکمین ملګري پوستې ته پر راروانو کومکي عسکرو هم برید وکړ په دې کامیابو عملیاتو کې ۱۴ عسکر ووژل شول، ۷ تنه ژوندي ونیول شول، دوه موټر تخریب شول یو مو غنیمت کړ.

دا عملیات دکابل کندهار په لویه لار دسړک پر سر ترسره شول نو ځکه یې له جزیاتو عام خلګ هم خبر شول او پیښې هغه مهال ډیر مطبوعاتي کوریج درلود.

د ۲۰۰۳ میلادي کال په وروستیو کې د زابل د شاه جوی ولسوالۍ په مرکز او امنیه قومندانۍ پراخ وسلوال او پروګرامي حمله ترسره شوه ،دشاه جوی ولسوالۍ په ولایت کې ترټولو مهمه او ستراتیژیکه ولسوالۍ ده چې دکابل کندهار په لویه لار پرته ده ، دښمن یې همیشه د ساتلو ډیر زیات کوشش کوي.په ولسوالي له دوو لوریو برید ترسره شو ،دحسن کاریز له خوا قومنده دملا روزي خان په غاړه وه او دارغنداب سرک له لوري قومنده دمولوي محمد عالم مسولیت وو.په دې حمله کې ددښمن ګڼ شمیر عسکر ووژل شول دمحمد جمعه په نوم یو قومندان ژوندی ونیول شو.

په ۲۰۰۴ میلادی کال کې دکابل کندهار په لویه لار قلات ته خیرمه دکابل اداري د زابل د والي خیال محمد حسیني په موټریز کاروان مخامخ برید ترسره شو چې له امله یې ګڼ شمیر امنیتي پولیس مړه او ژوبل شول او یو شمیر یې ژوندي ونیول شول خپله والي له بریده روغ ووتي. له دې برید وروسته دښمن سخت تعقیب پیل کړ امریکایي ځواکونو دملا روزي خان او ملګرو دنیولو لپاره سختې چاپې پیل کړې.

# ګلورینې پاڼې



## مناجات

عبدالاحد حماد

ستا په ښایست پسې مې وران کړې - لویه خدایه
زړګی مې ستا په عشق ودان کړې - لویه خدایه

چې خلاص د ځان له بندګۍ شم
بس لاس په سر له دنیاګۍ شم
او جوړ د ښمن د بدرنګۍ شم
مل د ښایست د شهزادګۍ شم
یار د خمارې زندګۍ شم
او پوه په خوند د ملنګۍ شم
په رنګ مین د بې رنګۍ شم
در پسې ټول سلګۍ سلګۍ شم
سمبول د درد د دنیاګۍ شم
او خلاص په دار له بې تنګۍ شم

ته مې در خپل ته مې د ځان کړې - لویه خدایه
زړګی مې ستا په عشق ودان کړې - لویه خدایه

ستا عَظمَت ته آسمانونه
سرپه سجده دي لوی لوی غرونه
درنه ځاریږي ښایستونه
زخمي غاټول او ګلابونه
د رڼو ستورو سترګکونه
اوړي په تا پسې موجونه

لوی دریابونه ولونه
ستایي دي مست مست آبشارونه
لولي دي نهـ نوي نومونه
په سرکو شونډو سره لالونه

ما مازدیګر ما درقربان کړې - لویه خد[ایه]
زړګی مې ستا په عشق ودان کړې - لویه خد[ایه]

په حقیقت او په مجاز کې
د هرې شمعې په ګداز کې
د تجلا په بیل انداز کې
د کوه طور په امتیاز کې
د ښکلو سترګو په اعجاز کې
د زخمي زړه په هر آواز کې
د صوفیانه رقص په راز کې
د هر غزل په سرآغاز کې
پایزیب، کتاب او په شهباز کې
بس ستا ښایست دی په هر ناز کې

د لمر په څیر مې سرګردان کړې - لویه خد[ایه]
زړګی مې ستا په عشق ودان کړې - لویه خد[ایه]

که خال او خط او که صنم دی
سیتار، رباب که زیر او بم دی
سر په ثنا دې ټول عالم دی
سهار، ماښام که صبحدم دی
په تا زیبا اسم اعظم دی
ګل که ګلدان او که شبنم دی
په تا بسیا لوح و قلم دی
بیت المعمور او که حرم دی
له ښایستونو په ملا خم دی
د بوډۍ ټال او که صنم دی
ستا د رحمت یو لوی عالم دی
وریځې ،باران او که زمزم دی

بس په تا ګران په حماد ګران کړې - لویه خدایه
زړګی مې ستا په عشق ودان کړې - لویه خدایه

# تکبیر

حاجي محمد اواب

د هیواد غازي هوا وایي تکبیر
د احمد بابا اروا وایي تکبیر

د توحید په میو مست د جام مینار
د ننګ ولاړ له ډیر پخوا وایي تکبیر

څوړ جګیږي له ارغنده د تهلیل
اتل رود د هریوا وایي تکبیر

تل خزه دی او دښمن ولي پر تېک
هسک پامیر کاندي غزا وایي تکبیر

ملا اوابه وني زانګي د درست روه
دا غازیان په جنګ لګیا وایي تکبیر

# غزاوې

حمد الله حلمیار

موږ یو ازاد خو پنجرې دي رانه تاوې فقط
هرڅه لرو دلته بس نه لرو رڼاوې فقط
دا دحیات پر چینه بل څوک دژوند حق نه لري
که حق لري نو دي یو څو توري بلاوې فقط
زما دخوبونو تفسیر زه په خپله ښه کومه
شیخه راوښیه وما ته یې معناوې فقط
دغرونو خلک دي دغرو په احاطه کې اوسي
دښار له خلکو نه چار پېره دي کلاوي فقط
نن چې پر دین او وطن ننګ ته راوتلی یمه
مورې په کار مې دي نن ستا د خولې دعاوې فقط
نو حلمیاره زموږ مرګ دی شهادت شهادت
چې په نصیب کې مو لیکلي دي غزاوي فقط

# آمین

محمد قسم زهیب

بیا طالب دښمن ته نا ست دی په کمین کې
د بري نښې یې ښکاري په جبین کې

انتقام اخلي دهغو مظلومانو
چې کباب شول په برما او فلسطین کې

د جهاد او د واغلظ قول راغلی
سستي نسته زموږ پاک اسلامي دین کې

چې د دین وطن ناموس دفاع څوک نه کړي
وي مسکن به یې اسفل السافلین کې

چې جهاد نه کړي منکر وي هغه نه دی
په امت د رحمة اللعالمین کې

مجاهد جانان سنګر کي یاسین وایي
ستر تاثیر ایښی الله په هر مبین کې

زه زهیب موحاکمان غواړم غازیانو
لاس کړئ پورته اې ملګرو په آمین کې



شهید ملا روزي خان د ۲۰۰۲ نه بیا تر ۲۰۰۴ م کال پورې د جهاد په هماغو لومړنیو امتحاني شیبو کې د خپلو حیرانوونکو کارنامو او کامیابو جګړو له امله د یوه پیاوړي ،منلي او بانفوذه طالب قومندان په حیث شهرت وموند .د زابل ولایت په ګڼو ولسوالیو او د ورخیرمه ولایتونو غزني او کندهار په یو شمیر ولسوالیو کې یې ډېر زیات نفوذ پیدا کړ ، نوموړي وخت ناوخت په زابل سربیره د غزني په ناوه ، مقر، او جنډه ولسوالیو کې هم عملیات ترسره کول ،د غزني ولایت د عسکر کوټ په امریکایي مرکز یې په لومړي ځل توغندیز برید ترسره کړ ، ملا داد ګل مسلم چې هغه مهال د شهید عاکف د سنګر ملګری وو وایي، په دې عملیاتو کې شهید ملا محمد ګل بشیر شهید ملا روزي خان او څو نور ملګري راسره ووچې د عسکرکوټ په کمپنۍ مو توغندي ورفیر کړې.

دیادو کلونو په موده کې د جهاد ساحې پراخې شوې او د جنوب په زیاترو ولایتونو کې د اشغال په ضد جهاد او مقاومت ګرم شو ، د زابل ،کندهار ،ارزګان او غزني مجاهدینو په همغږۍ او له یو بل سره په همکارۍ خپل جهادي فعالیتونه مخ ته وړل ،ددې جهادي فضاء په رامنځته کېدو او

سیمو په ازادۍ کې د ملا روزي خان اخند اساسي نقش و چې په لومړنیو سختو حالاتو کې یې جهادي مقاومت جاري وساتي ،او د جهاد ولوله یې سرېدا ته پرېنښوده.

## دشهادت واقعه یې

شهید ملا روزي خان په زابل او ورخیرمه جنوبي ولایاتو کې د اشغال په وړاندې دوسلوال جهاد له مخکښانو بلل کېده ، دنوموړي په نوښت او جهادي فعالیتونو په یادو سیمو کې د جهاد ساحې پراخې شوې.له هغه پیله لا نوموړی د دښمن د سترګو اغزی وو د هغه دله منځه وړلو ،شهادت او یا ژوندي نیولو لپاره یې ډېر زیات کوششونه او هڅې کولې،دنوموړي د کشف لپاره یې زیات شمیر جاسوسان ګمارلي و ترڅو دقیق موقعیت یې معلوم کړي.

کله چې په ۲۰۰۴ م میلادي کال کې د سیوري ولسوالۍ په مربوطاتو کې د امریکایي ځواکونو په قطار چاودنه وشوه په دې چاودنه کې د نورو پوځیانو ترڅنګ یو لوړ پوړي امریکایي آفسر چې (ډان) نومیده هم ووژل شو ، له پېښې وروسته له مطبوعاتو سره په خبرو کې ملا روزي خان د یادې حملې مسولیت ومانه،ملا سلیمان اغا بهیر وایي چې له دې پېښې وروسته حاجي روزي خان ته امریکایي ځواکونه ډېر زیات متوجه شول او د هغه دلمنځه وړلو لپاره یې مسلسلې چاپې ووهلې ، له څلورو سختو یرغلیزو چاپو نوموړی ژوندي ووت.ملګرو مشوره ورکړه چې د څه وخت لپاره سیمه بدله کړي او لرې ځان ګوښه کړي.

دخدای دلارې د سپیڅلي او پاک زړي مجاهد ملا روزي خان چې د جهاد په لار کې شهادت یې دژوند ترټولو ستر ارمان وو بالاخره د ۲۰۰۴ م کال د اګست په ۲۹ نېټه غرمه مهال د شاه جوي ولسوالۍ مربوط د(خړ دوزي )په نوم کلي کې په یوه کور کې له یوه بل ملګري سره ناست وو ، امریکایي ځواکونو یو ناڅاپه دهوایي او زمیني ځواک په مټ پرې چاپه ووهله او نوموړی یې محاصره کړ. دخړدوزي د کلي یو کلیوال دخپلو سترګو لیدلی حال داسي بیانوي، کله چې د الوتکو دړغ شو او په لرې فاصله کې یې دورې ووهلې ، ملا روزي خان په خپل کله کوف ماشین غوټه کړه او چاپټه یې وتړله،ملګري ته یې وویل ته تو پک وغورځوه په کلي کې چیرته ځان پټ کړه ما په خپله مخه پرېږده ، کلي ته نژدې غره ته یې مخه کړه ، دکلي په منځ کې کلیوالو را ایسار کړ او مشوره یې ورکړه چې د ابو دکاریز شاه ته باید شوه شي ، ملا روزي خان وویل چې زه امریکایانو ته ځان ژوندي په لاس نه ورکوم تاسو ځانونه خوندي کړي ما او کار سره پرېږدئ، دغره خواته په ختلې نرې لار باندې رهي شو او ډېر په اطمنان باندې روان وو ، امریکایي الوتکو زیات شور جوړ کړی وو او په نوموړي یې دګازي ګرنېټونو ګزارونه کول، کله چې نوموړی دغونډۍ سره ته پورته

شو هلته يې ددو لويو ډېرو په منځ کې سنګر ونيو، دده لور ته په څلور ټيره موټر سايکلونو کې په ور روانو امريکايي عسکرو يې ډزې کولې دې متقابلو ډزو تر ډېره پورې دوام وکړ د نوموړي په ډزو باندې يو شمير امريکايي عسکر ولګيدل چې نورو عسکرو د کلي په سر کې يوې کنډوالې ته په ځولۍ کې راوړل. وروسته د محاصرې کړۍ ورو ورو پرې راتنګيدله يو شمير عسکر د شاطرف ته ورسره راوګرځيدل او په شهادت يې ورساوه.

انا لله وانا اليه راجعون.

وروسته امريکايي عسکرو د نوموړي جسد له غره نه را کښته کړاو په هليکوپتر الوتکه کې يې له ځانه سره انتقال کړ.د نوموړي جسد ترشلو ورځو پوري امريکايي ځواکونو په باګرام هوايي اډه کې ساتلی وو له شلو ورځو بعد يې د سيمې د خلګو د ډير اصرار له امله سپين ږيرو ته وسپارل شو او نوبهار ولسوالۍ ته خيرمه د مشيزو په کلي کې خاورته وسپارل شول.

### د شهيد ملا روزي خان د شخصيت په اړه

د افغانستان د اطلاعات او کلتور او معارف پخواني وزير ملا اميرخان متقي چې په ۱۹۹۷م کال

کې د سالنګ له لاري شمال ته د اوښتو طالبانو سره يوځای او د کندز د محاصرې عيني شاهد و ،د ملا روزي خان جهادي فعاليتونه او له جهاد سره شوق يې له نيژدې په خپلو سترګو ليدلي او څارلي،د دښمن په وړاندې دهغه مهال په تعرضونو کې د نوموړي،د پوره ميړانې، پوځي نبوغ او هوښيارۍ يادونه کوي، همدا راز د امريکايي اشغال په وړاندې د جهاد په شروع کولو کې د شهيد ملا روزی خان عمده رول د قدر وړ بولي ،نوموړی د شهيد عاکف د شخصيت په اړه خپل نظر په لنډو ټکو کې داسې څرګندوي:

په پلخمري او کندز کې د محاصرې او مقاومت شپې ورځې واقعا د تکليف ،ستړيا او فشار له اړخه کم ساري وې چې هرچاپې د برداشتولو توان نه درلود ، ملا روزي خان اخند چې په هغه وخت کې په عمر هم کشرو خو ثبات او لوړ مورال يې ديوه ډيرپاخه او تجربه کاره شخصيت په ډول و ،نوموړي له دې سختو حالاتو سره خورا په ورين تندي برخورد کاوه هغه داتکاليف اصلا تکليفونه نه بلل زما يې دا ورتيا ډيره خوښيده چي په کوم طرف به سختي وه ،د دښمن فشار به وا و په ده به موږ وکړ خورا په چټکي او خوښي به فورا هغه لوري ته روان شو او د خطرپروايې نه کوله بل داچي دالله دلاري ديوه مجاهد ترټولو ممتازه خاصه بايد ښه اخلاق وي شهيد ملا روزي خان له دې امله هم الله تعالی په لوړ انعام نازولی و.

تکړه ليکوال او شنونکی مولوي عبدالرحيم ثاقب چې له ملا روزي خان سره يې ډيرځله ليده کاته شوي، د نوموړي په اند شهيد ملا روزي خان د امريکا يی اشغال په ضد د جهاد او مقاومت مشهوره او تاريخ سازه څهره ده نوموړی زياتوي: شهيد ملاروزی خان يو ځوان نوښتګر شخصيت وه چې په ښکلې جهادي څيره کې يې تربل هرڅه زيات د پوځي نبوغ او زکاوت نښې څرګندوې ، ماچې به کله هم نوموړی شهيد ليدو ، د ده په ليدو به مي په زړه کې جهادي عزم او همت را تازه کيدو ، هغه مهال چې د غربي ميډيا د تبليغاتو په مټ صليبي ځواکونه د نړۍ بې سياله فاتحين بلل کيدل او د دوی په مقابل کې دريدل يواځې له خپل ژوند سره دلوبو کولو په معناوه شهيد ملاروزي خان په خپل جهادي همت او شجاعت سره عملا وکړای شول چې افغان ولس ته د يرغلګرو په مقابل کې د بريمنې مقابلې روحيه ورکړي. د صليبي يرغلګرو په خلاف د جهاد ابتدايي مراحل ډير تاريخ جوړوونکې حساسې شيبې وې چې اساس يې د شهيد عاکف په څير د غيرتي سربښندونکو غازيانو په فداکاريو او قربانيو ښودل شوی دی.

زمونږ د جهاد اوسنۍ ټولې پوځي او سياسي لاسته راوړنې هم دهماغې تاريخ جوړوونکې مرحلې د تاريخي قهرمانانو د قربانيو او سربښندنو محصول دي.

شهید ملا روزیخان (عاکف ) د خپل عصر د جهادي سرخیلانو په جمله کې یوځوان ،مبتکر او ویښ قائد وه چې د بهرنیو یرغلګرو په مقابل کې د جهادي پلانونو په طراحي کې خپل ځانګړی مهارت درلود..

د اسلامي امارت ویاند ښاغلی ذبیح الله مجاهد وایي:

دشهید ملا روزي خان له نامه سره هغه مهال آشنا شوم چې دطالبانو داسلامی تحریک ځواکونه په میدان ښار کې دشر او فسادله ملیشو سره په جګړه بوخت وو ، د کوهې کورغ په استقامت به اکثره وخت دې ته اړتیا پیدا کیدله چې مجاهدین د دښمن په مرکزونو او پوستو تعروضي بریدونه وکړي ، ددغو بریدونو په جریان کې به د میدان ښار د خط ټولو مجاهدینو خپله ونډه اداکوله په دغو جګړوکې به ځینې مجاهدین چې خورا زړور ، باتور او میړنې معلومیدل له یوبل سره اوږه په اوږه دتعرض په هیله روان وو ، تور او نوي ثقیلان ( پیکا ماشینګڼ ) به ورسره وو او دبرید په لور به یې قدم واهه ، په دغو کسانو کې یو هم دزابل ولایت مشهور قومندان ملا روزي خان ، ورسره بل مشهور دلګی مشر ملابسم الله سحر او دپکتیا ولایت دزرمت اوسیدونکي (جګ) ملا نذیر اخند وو ، دغو دریو ملګرو به په خپل منځ کې خورا مینه او صمیمیت لاره ، له ملا روزي خان سره دلړ اوږدې زمانې لپاره هغه زمانه شناخته پاتې شوم چې دکندز په ولایت کې دلومړي ځل لپاره طالبان محاصره شوي وو ، په دې مهال شهید ملا روزي خان اخند دکندز په بالاحصار او ورنه لاندې نیږدې مرکزونو کې له خپلو ګڼ شمیر طالب ملګرو سره اوسیده او وخت په وخت به یې د محاصرې به زمانه کې کله یو خوا او کله هم بله خوا ددښمن دتعرضونو مخنیوې ته دانګل ، او په ډیر اخلاص یې جهادي خدمت کاوو. کله چې خبره امریکایي یرغل ته ورسیده نو د دوهم ځلي جهاد په پیل کې مې بیا دملا روزي خان اخند نوم د زابل په ولایت کې واوریده چې دمیړانې ملایې تړلې او له یرغلګرو سره په جګړه بوخت ده ، نورهغه صفات چې دده د لاډیر متانت او لا قهرمانی په اړه اوریدل شوي بیخي زیات دي کوم شی چې زه زیات متاثر کړم هغه دا وو چې یوه مخلص ملګري راته دشهید ملا رزوی خان کیسه کوله، چې یو چاترینه پوښتنه وکړه چې ډیره ښه ځواني دې ده نو که جهادکوي شهید نشي ؟وایي ده ورته په ځواب کې وویل چې( زما هم دا خوښه ده چې خداي راکړې ښه ځواني بیرته دالله په لاره کې قرباني کړم ).

**له پورته وینا څخه دده نیت ، خلوص او له الله تعالي سره مینه څرګندیږي .**

شاعر او لیکوال ملا راز محمد ساقیار چې له شهید عاکف سره ډیر وخت پاته شوی، په سنګر او یو شمیر سفرونو کې ورسره ملګری شوی، دنوموړي په اړه وایي، ملا روزي خان دجنګ په میدان کې دقهرمانۍ او فداکاري ترڅنګ دنورو ګڼو عالي صفاتو درلودونکی وو ،دښایسته صورت او سیرت،لوړو اخلاقو او متواضع طبیعت د درلودلو له امله یې دخلګو په زړونو کې ځاي پیدا کړی وو ،دمختلفو قومونو او مختلفو ژبو مجاهدین(عرب،ترک، او ازبک ) ورسره ملګري وو چې ترخپله وسه یې کوشش کاوه چې له ټولو سره په شناخت او علاقه کې مساوي ګوزاره وکړي. په وروستي ځل چې بیا په هغه موده کې پسې شهید هم شو ترشپږ میاشتې زیات وخت مسلسل له مجاهدینو سره په سنګر کې پاته ووا و دشهادت په شوق یې وخت تیراوه.نوموړی دجهاد په کارونو کې خورا زیات جدي سړي وو.

ملا عبدالاحد جهانګیر وال، داسلامي امارت دحکومت په مهال دامیرالمؤمنین کاتب او سکرتردشهید عاکف په اړه خپل نظر داسي څرګندوي:

شهید ملا روزي خان له ښایسته ځواني او نیکو صفتونو سره سره یو استثنایي شخصیت ، دلوړ فکر او عالي تدبیر څښتن وو ، ټول فعالیتونه او تحرکات یې د اسلام، وطن او د اولس دخلګو په ګټه وو د اسلامي نظام برپا کیدل او دهیواد ازادي

يې تر ټولو غټ ارمان وو، او په دې لار کې شهادت يې ارزو وه، دده له شهادت وروسته رامنځ ته شوې خلا تر او سه پورې موږ ډکه نکړای شوه.

ليکوال او مبصر قاري حبيب وايي: ملا روزي خان په ۲۰۰۳م کال کې په جهادي ډګر خورا مطرح شو، دا د مايوسيو او امتحاناتو سخت شرايط وو، د امريکايانو يرغل په زور کې و، خو د اسې ويل کيدل چې په زابل ولايت کې د ملا روزي خان اخند په مشرۍ مجاهدين علني جهاد کوي، له دې وروسته مې په يوه ويډيوي فلم کې د نوموړي د جهادي فعاليتونو ژوندۍ صحنې وليدې چې خورا روح پارونکې او مورال ښونکې وې، نوموړی د نړيوال يرغلګر کفر ستر دښمن و، چې بالاخره د امريکايانو سره په مخامخ جګړه کې د شهادت لوړ مقام ته ورسيد.

د نوموړي جهادي مرتبت له دې هم اټکلولای شو، چې امريکايانو يې د شهادت خبر ډير مطبوعاتي کړ، د نوموړي د شهادت په پېښه يې مستند فلم جوړ او نشر کړ، او د نوموړي جسد يې د دريو اونيو لپاره د بګرام په اډه کې ساتلی و، په هر حال شهيد ملا روزي خان اخند د سختيو او ناهيليو په تورتم کې هغه ځلنده ستوری و چې د ځوان جهادي نسل اميدونه يې تاند ساتل، په پای کې دا ستوری د شهاب غونډې د وخت په شيطان راپريوت او د خپل تن په بيه يې د وخت فرعون ته عبرتناک ګوزار ورکړ.

## د دښمن اعترافات

کله چې د زابل په ليرو پرتو ولسواليو کې د اشغالګرو او کابل اداري فعاليتونه محدود شول، مجاهدينو ډيره توجه د کابل کندهار لويې لارې ته واړوله په دغه لاره د اشغالګرو ځواکونو په پوځي او اکمالاتي کاروانونو يې حملو ته زور ورکړ په عمومي سړک يې پوره کنترول او واک پيدا کړ ډير وخت به د کابل کندهار عمومي لار د ساعتونو لپاره د مجاهدينو د عملياتو له امله بند وه. دې حالت د کابل اداري چارواکي سخت په تنګ کړل له مجاهدينو سره د ځه تيرې بيرې د خبرو کولو کوششونه يې پيل کړل په دې موده کې يوځل علي احمد جلالي چې هغه مهال د کابل رژيم د کورنيو چارو وزير وو، له ملا روزي خان سره يې ټليفوني اړيکه ونيوه او داسي يې ورته وويل، ته يو زړور افغان يې او د دې خاورې غيرت من بچی يې زه ستاسو په ميړانه وياړ کوم، ته د افغانستان يوه هستي يې په دې بې ځايه مقاومت کې خپل ژوند له لاسه مه ورکوه، که تاسو غواړئ چې له مقاومت نه لاس واخلئ ستاسو هرډول شرايط به ومنل شي او هرځه امتياز به درکړل شي.

ملا روزی خان په ځواب کې ورته وويل، زه ستاسو د دې حسن نظر چې زما په اړه يې لرې ستاينه کوم، بايد ووايم افغانستان اشغال شوی دی، وطن ته مو په حساب په زرګونو کفري لښکرې راغلي، اوس وخت په موږ او تاسو ټولو جهاد فرض دی، د خپل ځان په اړه به درته ووايم ترځو چې يو اشغالګر خارجي عسکر په افغانستان کې موجود وي زه به له جهاده لاس وانخلم.

د کابل کندهار په لويه لار نژدې هره ورځ د دښمن اکمالاتي ټيلر او ټانکر تر بريد لاندې راتلل او درونډ مالي زيان ور اوښت، ملا دادګل مسلم وايي، يوځل د کابل اداري د غزني والي اسدالله خالد ملا روزي خان ته ټليفون راوکړ او ورته يې وويل، په اکمالاتي ټانکروو او لاريو بريدونه پريږدئ هره مياشت به يې په مقابل کې تاسو ته يو لک ډالر درکوو. خو حاجي ملا روزي خان ورسره ونه منله.

رحمه الله تعالی

د ۱۴۳۲ ه ق کال د محرم الحرام د مياشتې ۲۷ نېټه

په افغانستان د امريکا يرغل د معاصر وخت يو کمساري جنګ و، د نړۍ تر ټولو ستر جنګي ايتلاف له خپلو غرور او تکبر سره په يوه تر ټولو مظلوم، تش لاسي او

حبيب مجاهد

# مغرورانه يرغل او عبرتناک شکست

خپل شوي اولس باندې هجوم وروور، د کفر هغه جنګي ايتلاف چې په افغانستان يې بريد وکړ، ۴۴ هيوادونو په کې پوځي ګډون درلود او ۵۴ نورو د سيمې او نړۍ هيوادونو ورسره استخباراتي ملګرتيا درلوده، دومره ستر جنګي ايتلاف حتی د تيرو نړيوالو جګړو په مهال هم نه و ليدل شوی،دغه جنګ هغه مهال خلکو د فيل او غوماشي جګړه بلله ، چې يوې خوا ته يې عالمګير جنګي ايتلاف او بلې خوا ته يې محدود خو دعقيدې په وسله سمبال مجاهدين و.

امريکايانو دخپل پوځي غرور او ظاهربينۍ له امله خپل جنګ ته د دتلپاتې ازادۍ نوم ورکړ، دوی فکر کاوو چې دغه جنګ يې ګټلی دی او مجاهدين به بيا کله هم ونه توانيږي چې ددوی جنګي قواوو ته خنډ شي، يا يې په وړاندې کوم مقاومت وکړي.

خو الله تعالی هرځه سرچپه ثابت کړل، الله تعالی د افغانستان د جګړې په ډګر کې يوځل بيا ناخبره انسانانو ته عملا وښودل ، چې دجګړې د ګټلو معيار يوازې ظاهري وسائل او اسباب نه دي،بلکې قوي ايمان او په الهي نصرت باور هغه څه دي، چې کمزوري خلک د بريا تر منزله رسوي، او الله تعالی په هره زمانه کې کولای شي، چې د کمزورو مؤمنانو په لاس د زورورو فرعونيانو په راچپه کولو سره بندګانو ته خپل قدرت وښيي.په افغانستان کې همداسې وشول، هغه امريکايي، برتانوي،فرانسوي،ايټالوي، کانادايي، هسپانوي،هالنډي او دنورو کفري هيوادونو يرغلګر چې د غرور په مستۍ کې راغلي وو او غوښتل يې دا هيواد په خپلو هميشنيو مستعمراتو کې داخل کړي، دمجاهدينو درسا ګوزارونو په پيل کې مجبور شول، چې يو يو د تيښتې لاره ونيسي.

د استراليا ،هالنډ، پولينډ ،ډنمارک ، ايټاليا ،هسپانيا ، کاناډا ،فرانسې، چک ، ناروې، سويډن،نيوزيلاند او تر يولک زياتو امريکايي عسکرو له تيښتې وروسته تيره مياشت برتانوي يرغلګرو هم په افغانستان کې رسما خپل بيرغ راکوز او له دې هيواد څخه يې د تيښتې لار ونيوله.

برتانيا هغه هيواد و چې له امريکا وروسته يې د افغانستان په جګړه کې تر ټولو دير نقش درلود ، او په جنګي درېځ يې پرلپسې ټينګار کاوو ، خو د ۲۰۱۴ م کال د اکتوبر په ۲۲ ددې هيواد عسکرو د هلمند په شوراب کې په خپله مرکزي قرارګاه کې

د یو لړ مراسمو په ترڅ کې رسما خپله ناکامي ومنله او د خپل بیرغ له راټیټولو وروسته یې خپل ټول پوځیان له افغانستان وایستل.

د برتانوي عسکرو له وتلو دوه اونۍ وروسته د برتانیې ددفاع وزیر مایکل فالون اعلان وکړ، چې له افغانستان څخه یې خپلې ټولې جنګي او استطلاعي الوتکې هم ایستلي دي، نوموړي وویل چې په دې هیواد کې د برتانیې ګڼ شمیر استطلاعي الوتکې تیره لسیزه کې په دنده بوختې وې، دغه راز د تورناډو الوتکو په شمول ګڼ شمیر بې غورځوونکي جنګي الوتکو هم تیر څو کاله په افغانستان کې دنده درلوده، خو د اکتوبر میاشتې په لومړیو کې دغه ټولې الوتکې له افغانستان څخه ایستل شوي او اوس برتانویان په دې هیواد کې هیڅ زمیني یا هوايي جنګي ځواک نلري.

باید وویل شي چې همدا اوس له امریکایانو پرته نورو زیاتره هیوادونو خپل ټول عسکر له افغانستانه ایستلي دي، دجهادي عملیاتو په نتیجه کې له مزارشریف پرته ټول شمالي ولایاتونه او له ننګرهار پرته ټول ختیځ او شمال ختیځ ولایات د یرغلګرو له بدمرغه شتون څخه پاک شوي دي، یرغلګر اوس یوازې د پلازمینې په شمول لږو سیمو کې کم حضور لري، چې هغه هم د تیښتې په حال کې دي.

د یرغلګرو هغه پخې قرارګاوې چې چا یې د تښتیدلو او تخریب تصور نه کاوو او دوی خپلې تلپاتې اډې بللې، په دې وروستیو کې داسې انځورونه خپاره شول چې یرغلګر یې په خپلو لاسونو تخریبوي او له منځه وړي، دا جریان د کفري یرغلګرو پروني غرور ته په پام سره یو له عبرته ډکه واقعه ده چې د الله تعالی هغه وعده یو ځل بیا رښتیا کوي، چې د مدینې منورو د یهودو په اړه یې ویلې وو.

هُوَ الَّذِي أَخْرَجَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِن دِيَارِهِمْ لِأَوَّلِ الْحَشْرِ مَا ظَنَنتُمْ أَن يَخْرُجُوا وَظَنُّوا أَنَّهُم مَّانِعَتُهُمْ حُصُونُهُم مِّنَ اللَّهِ فَأَتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُم بِأَيْدِيهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِينَ فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ



الله تعالی هغه ذات دی چې د اهل کتابو له ډلې هغه چې کافران شوي وو، د لومړني تبعید په وخت یې له خپلو کورونو وایستل، تاسو ګمان نه کاوو چې دوی به ووزي، او دوی ( یهودو ) هم یقین درلود، چې کلاګانې یې د الله تعالی د عذاب دفعه کوونکې دي، الله تعالی دوی ته په داسې توګه ورسید چې دوی یې ګمان نه کاوو، ددوی په زړونو کې یې ډار واچاوو، دوی خپل کورونه په خپلو لاسونو ورانول، او همدارنګه دمسلمانانو په لاسونو، نو (له دې څخه) عبرت واخلئ اې د سترګو خاوندانو. سوره الحشر ۲ آیت

بې له شکه په افغانستان کې د څو تنو مؤمنو مجاهدینو په لاس د غربي کفري ایتلاف ماتې او بیا د یرغلګرو لخوا په خپلو لاسونو ددوی د قرارګاوو ورانول او وارخطاء تښتیدل یې له تصور څخه لرې حقیقت او د الهي نصرت څرګنده مصداق و.

همدا اوس که له یوې خوا د کفري یرغلګرو عبرتناکه تېښته جریان لري له بلې خوا ددوی دداخلي ګوډاګیانو تېغرهم په تولیدو دی، مجاهدین هره شیبه ترې سیمې نیسي، ددوی مراکز له منځه وړي او دمحاصرې کړۍ وربانـدې تنګوي، داچې دیرغلګرو دداخلي پاتي شونو په خلاف جهادی عملیات خنګه روان دي، راځئ دلته د سرېکال د خیبرعملیاتو په اوږدو کې یوازې دهلمند په شمالي سیمو کې د مجاهدینو دفتوحاتو جاج واخلو چې په تیرو څو میاشتو کې یې صورت موندلی.

د هلمند ولایت مرستیال والي ملا محمد داود مزمل الاماره ویب پاڼې ته په خپله مرکه کې ویلي: د تیرو څو میاشتو په عملیاتو کې د سنګین ولسوالۍ د خاروان کلا سیمه چې د سنګین له دریو دوه برخې تشکیلوي، مجادینو مکمله فتحه کړه په دې سربیره مجاهدینو په موسی کلا ولسوالۍ کې هم لوی فتوحات درلودل، ددې ولسوالۍ شیخ علي، ده غوچک او داسمانیانو پراخې علاقې فتحه او ددشمن له شتون څخه پاکې شوې په موسی کلا کې هم دښمن یوازې په مرکز کې محصور پاته دی، په نوزاد ولسوالۍ کې دباغو سیمه چې دنوزاد اصلي او مهمه علاقه ده ، سږکال مجاهدینو فتحه کړه، په دې سیمه کې ددښمن ۹ غټې پوستې او قرارګاوې له منځه یووړل شوې او مجاهدینو په سیمه کنترول ترلاسه کړ، د ګرشک په ولسوالۍ کې هم سږکال دښمن سخت وټکول شو، ددې ولسوالۍ په



کومو سیمو کې چې دښمن پاته و، لمن یې ورټوله شوه او د مرکز په خوا مجاهدینو پرمختګ وکړ، د ګرشک په نهرسراج کې ۱۵، په حیدراباد کې ۱۳ او په ده ادم خان کې ۱۰ پوستې مجاهدینو فتحه کړې، د اولس میشته سیمو له جملې دګرشک لسمه برخه سیمه چې دمرکز شاوخوا سیمې دی ددشمن ترولکه لاندې پاته ده نورې سیمې ازادې شوې دي، له دې علاوه د هلمند په نورو سیمو کې هم سخت مجاهدینو دپام وړ لاسته راوړنې درلودې، په مارجه کې دتریخ ناور، سیستاني او ځیني نورې سیمې چې امریکایانو دمارجې دلویو عملیاتو په لړ کې اشغال کړې وې بیرته مجاهدینو ونیولې.

په هلمند او نورو سیمو کې دمجاهدینو دفتحو لړۍ په داسې حال کې په مخ روانه ده ، چې بهرني یرغلګر له هیواده په تیښته دي، هره ورځ د یوې نوې قرارګاه د پرېښودلو او د یوه بل بیرغ د راکوزولو خبرونه خپرېږي ، دا په داسې حال کې چې پوره دیارلس کاله وړاندې په همدې شپو ورځو کې یرغلګر په خورا مستۍ کې وو، په ډیر غرور یې ځرګندونې کولې او د افغانستان د دایمي اشغال لاپې یې وهلې.

خو دالله تعالی د لارې سپیڅلي مجاهدین چې په الهي نصرت یې باور درلود په خپلو ناپایه قربانیو وتوانیدل چې د نړیوال جنګي ایتلاف مغرورانه دریځ په شرمینده تیښته بدل کړي، او سرټیټي شاګرځ ته یې مجبور کړي

# داسلام جنګي قانون:

م. رفیع الدین حنیف قاسمي

اسلام خپل جنګي قانون. په "جهاد في سبيل الله" نومولي، څه زمونږ د خپلو کمزوريو، بدو کړنو، بې ځايه خوځښتونو اوله حده ډېر جذباتيت
ښودو اوبل داسلام دښمنو سازشونو، افواهاتو، غلط پروپاګند، او دهغوئ د غلطو تعبيراتو او ناسمو تشريحاتو د جهاد حقيقي مفهوم مخدوش کړی،
دټولنې په اصلاح، دعامه امنيت په پلی کولو، دظلم، فساد او انارشيزم په مخنيوي کې دجهاد په بامعنی کردارې پرده غوړولي.
د ميډيا اورسنيو د پروپاګند په دي وخت کې، هر مسلمان مسؤليت لري، چې هغه د تشهير دبېلا بېلو زريعو د لارې داسلامي حکمونو روښان او
ځلاند اړخونه بيرون ته ښکاره اومنعکس کړي، څو دزماني واټن غځيدا او دمسلمانانو دغفلت
، لاپرواهی اوناپوهی په نتيجه کې په اسلامي لارښوونو پريوتي ګردونه او دوړې ليري او داسلامي لارښوونوحقيقي روښانه او ځلاند څېره دخلکو
په وړاندې وځلېږي.
ددي خدمت، يوه نغده ګټه داده، چې داغيارو اوپرديو ټول ناسم نظريات اوتشريحات به ځواب اوبې معنی پاتې شي، بل به هغوئ ته په اسلام د
پوهيدو لپاره لارې بيرته شي، داليکنه په همدې لرليد ليکل کېږي، څو داسلامي جنګ بېلا بيل محاسن را ښکاره، اوداغيارو باطل نظريات اومفروضات
ردشي، داسمه ده چې داسلام مبارک دين يومخ ټول د خير او رحمت دين دی، خو ځينو دهوس مينانو، دخيټوغلامانو، دعدل او انصاف قاتلانو تل
کوښښ کړی، چې دتغير او تحريف له لارې ديو عبادت حقيقي مفهوم دخلکو له نظره پټ کړي اوله خپله ځانه د هغه لپاره يوه معنی او مطلوب
وتراشي! چې په دي کار کې هغوئ خورا زيات مهارت هم لري!
داچې نن سبا، داسلام جنګي نظريه، دکفري مليتونو په ستر ګو کې ازغی ده، هغوئ پخپلو ستر ګو دتعصب او عقدې جشمې کړي، قصداً داسلام جنګي
نظرياتو ته دبدل رنګ خيژولو کوښښونه کوي، ولې هغوئ دا ښه درک کړي، که داسلام اصلي او روښانه څېره دنړۍ خلکو وليده، بيا ددوئ باداري له ګواښ
سره مخ کېږي، ديته په پام هغوئ لګيا دي په مختلفو عنوانونو اوپلمو داسلام روښانه، ځليدونکي اولوړ لمر ته دلاړو ور تف کولو حماقت کوي!!

## دجهاد حقيقي مفهوم

ددي بحث نه به تېر شو، چې على الاطلاق جنګ ممنوع ندی، داسلام نه مخکنيو امتونو اوپيغمبرانو ته، هم دکفارو سره دقتال او جهاد احکام ورکړل
شوي وو، مطلب داچې قتال اوجهاد کوم نوی حکم ندی، رازو داسلام په مبارک دين کې دجهاد د حقيقي مفهوم موضوع ته، دجهاد په اړه يوه تيروتنه داده،
چې دجنګ په معنی اخستل کېږي، عربي کې د "حرب" لفظ يې مرادف بلل کيږي، چې دتباهې او بربادۍ په معنی دی، المعجم الوسيط: ۱۴٦)
خو عظيم الشان قرآن داسلام جنګي نظريې لپاره "حرب" لفظ ندی کارولی، دپام وړ خبره داده چې دکوم ملت او دين په نامه کې دامن او سلامتيا مفهوم
ځای لري، ايا هغه د بې ځايه، وينو تويولو او د فساد خورولو ته دعوت ورکولی شي؟ بلکې داسلام مبارک دين نړۍ ته ددې لپاره راغلی چې دظلم اوفساد



جګړې پای ته ورسوي، په ځای یې نړیوالو ته په امن، عدل اومساوات بناء جنګي نظریه په مخکي کیږدي، چې دجنګ په تودو شیبو کې هم دهیڅ انسان حق تلف نشي! پري ظلم ونشي، ځکه په یاد لغت کې دجهاد دلفظ تشریح داسې شوي: قتال من لیس لهم ذمة من الکفار... یعنی له غیر ذمیانو سره قتال. (المعجم الوسیط)

## داسلامي جنګ هدف: دفتنې اوفساد دريښو ریبل:

په اسلام کې جنګ یو ښه مبارک عمل دی، له دې وجې مونږ ته یې په اړه د معذرت رویې غوره کولو اړتیا نشته، ددېنه وروسته په دې پوهیدل پکار دي چې اسلام افاقي اونړیوال دین دی، لارښووني یې دنورو ادیانو پشان یوائي دځو رسمونواو عقایدو ټولګې ندي، اونه دانسانانو په لاس لیکلی قانون او دستوردی، بلکې دکایناتو دخالق لخوا دژوندانه لپاره رالیږل شوی نظام دی، چې دژوند دهرې برخې په اړه یې بشریت ته روښانه اصول ټاکلي، هم دا وجه ده، چې هر شخص لپاره اسانه ده، چې هغه په اسلامي لارښوونو عمل وکړي، هر کس کولی شي د اسلامي اصولو پخپلولو داسلام دامن، رحمت اوعافیت لمن کې ځان ځای کړي ، داسلام دجنګي (جهاد) نظام موخه همداده چې اسلامي لارښووني په هر لور خورې شي، دزمکې له مخ نه د ظلم، نا انصافۍ، بې امنۍ، جبر او فساد ټغر ټول شي، څو هر شخص په ازاده توګه دخدایي نظام دسیوري لاندې په امن اوډاډ سره ژوند وکړي، داسلام دپراخیتا غرض داندی، چې اسلام ته په ننوتو به خلک مجبوره ولی شي، دالله (ﷻ) ارشاد دی: لا اکراه فی الدین... په دین کې زرور او جبر نشته... که څوک دجزیه ورکولو په مشروعیت غور وکړي، دا حقیقت به ورته روښانه شي، چې داسلامي جنګ هدف داسلام غلبه ده، که هغه دیومخالف انسان په اسلام قبلولو سره راځي، اوکه دیوچا په رعیت جوړیدو ؛ چون جزیه ورکول، داسلامي سلطنت دننه د ژوندانه اسلامي اصولو منلو ته غاړه ایښودل په حقیقت کې داسلام برتري منل دي، هر کله چې اسلام ته غلبه په برخه شي، فتنه او فساد به ورک شي، جنګ به موقوف شي، او همدې "ذمي" ته به په اسلامي سلطنت کې هغه ټول حقوق په برخه وي، کوم چې یو مسلمان ته په برخه وي، په قرآن پاک کې الله (ﷻ) فرمایلي ﴿او هغوئ سره تر هغه وجنګیږئ! چې فسا دپاتې نشي، او دین (غلبه) دالله شي اوکه هغه خلک (دفسادنه) را وګرځیدل نو سختې به له هیچا سره نه کیږي، پرته دبې انصافي کوونکو سره﴾ البقره: ۱۹۳ایت) پ دې ایت کې دجنګ بندۍ انتهاء، د فتنې اوفسادپای ته رسیدل په ګوته شوي.

درسول الله (ﷺ) په وخت کې غزوات او سرایا ټول ۸۲دي، که دغه جنګونه اقدامي اومنل شي، بیاهم دمقتولینو جمله شمېر۱۰۱۸ یوزر اتلس دی، چې بیا دا په ۸۲ وویشل شي، یوجنګ کې ۱۲.۱۴۱۴ (دولس اعشاریه څلورسوه څوارلس) اوسط راوځي، درسول الله (ﷺ) په وخت کې د ټولو بندیانو شمېر ۶۵۶۴ (شپږزره پنځه سوه څلورشپیته) دی، چې دجزیره ډول عربي سیمې پراخیتا ته په نسبت هیڅ دی، بیا په دې کې لوی شمېر دحنین د ۶۰۰۰ (شپږزره) بندیانو دی، کوم چې ټول ازاد شول، له دې وجې په پاتې نورو جنګونو کې دبندیانو اوسط اووه راوزي، ددې په مقابل کې دتیري زمانې ددوه لویو نړیوالو جنګونو دبربادیو اومرګونو پرتلنه اومقایسه که وکړو، کوم چې دځو کوچنیو هېوادونو دازادولو لپاره شوي، او پکې دوژلوشویو او ټپي شویو انسانانو شمېر له اویا لکه نه اوړي، نوره نړۍ شاته کړه د"مقدسین" جنګ راواخله د"مهابهارت" دوژل شویو شمېر له لس ملیونه څخه کم ندی، اروپا کې دمقدسو جنګونو په نوم چې څومره خلک وژل شوي دهغوئ شمېر له لکونو څخه اوړي (ددې لپاره وګورئ :رحمةللعالمین ۲ټوک ۴۲۴مخ)

جزیه ورکول، په اصل کې داسلامي لارښوونو دبرترۍ او دزمکې په مخ دفتنې اوفساد په مخنیوي اعتراف دی، دیته هم دجنګ بندۍ انتهاء ویل شوي، دالله (ﷻ) ارشا ددی اهل کتاب هغه چې نه په خدای (پوره) ایمان لري، اونه دقیامت په ورځ اونه هغه څېزونه حرام بولي کوم چې خدای (ﷻ) او دهغه رسول حرام کړي، او نه رښتینی دین (اسلام) قبلوي، دهغوئ سره تر هغه وجنګیږئ، چې هغوئ څملي او جزیه اومني. (التوبه ۲۹)

جزیه هغه مال ته ویل کیږي، چې داسلامي سلطنت لاندې کوم کافران اوسي، دهغوئ دځان، مال او ابرو ساتنې په غرض د هغوئ نه اخستل کیږي، دا معمولي مال وي، جزیه ورکونکو ته ذمیان ویل کېږي، داسلامي سلطنت درعایاوو په حیث دهغوئ دځان، مال او اوبرو ساتنه داسلامي سلطنت دنده اومسولیت دی، دهغوئ په دیني امورو کې لاسوهنه اسلام منع کړي، د هغوئ له ماشومانو، بوډاګانو میرمنو، اومعلولینونه جزیه نه اخستل کېږي، په همدې توګه په "مکاتب، مدبر، ام الولد" هم جزیه نشته، مذهبي پیشوایان چې ګوشه نشین وي، په هغوئ هم جزیه ورکول نشته (اصح السیر ۴۷۴مخ)

## په غیر جنګیانو د تعرض ممانعت:

داسلام د جنګي قانون، ښکلي او راښکونکې اړخ دا دی، چې دجنګ دوران کې دبې قصوره، بې وسلې، او کمزوروخلکو له وژلو په کلکه منع کوي، کوم خلک چې عملاً په جنګ کې ګډون لري، یا کوم چې دمشورو او خدمتونو له لارې کومکونه کوي، هغوئ دوژلومستحق بولي، په پاتې نورو لکه ماشومانو، میرمنو، سپین ګیرو اوخلوت کې ناستو عابدانواوزاهدانو سروکار نلري ،دجنګ په دوران کې دبې قصوره خلکو وژل، خو لیرې خبره ده، اسلام دشنو ونو، فصلونو، میوه لرونکوبوټو اوباغونو ته دزیان رسولو نه په کلکه منع کړې،په یو روایت کې دي، چې رسول الله (ﷺ) وفرمایل: کمزوري سپین ږیري، کوچني ماشومان ،اومیرمنې دې و نه وژل شي (ابوداودباب دعوة المشرکین الى الاسلام،حدیث: ۸۴۹)

په بل روایت کې راځي، حضرت ابوبکر صدیق (رضي الله عنه) شام ته یولښکر واستاو،هغوئ ته یې دالارښوونې وکړې: ماشومان و نه وژنئ،په هیڅ میرمن لاس پورته نکړئ، سپین ږیري قتل نکړئ،میوه لرونکي ونې قطع نکړئ، باغونو ته اور وا نه چوئ (موطاء امام مالک: ۱۶۸مخ)

دا خبره دپام وړده، په نبوي دور کې رسول الله (ﷺ) په هره کومه سیمه یا علاقه کلا بند کړه، دهغې دننه ټول میشت قبایلو او خلکو مخامخ په جنګ کې ګډون کاو،البته دصحابه وو په وخت کې عموماً دمسلمانانو مقابله دخلکو سره نه ،بلکې دحکومتونو اومنظمو پوځونو سره وه،په دې وجه مجاهدینو هېوادونو ته په فاتحانه ډول ننوتو وروسته ،هلته دعاموخلکو په مالونو، ملکیتونو،یا دهغه ځای دخلکو په مال او ځان لاس نه پورته کاوه،تردې پورې دهغو هېوادونو خلکو دمسلمانانو په زیات عدالت او انصاف لیدلو خوځله دهغوسیمو خلکو دخپلو عیسایانو،اوپارسیانوپرضد له مسلمانانو سره کومکونه وکړل، هغوئ ته یې دجاسوسۍ خبرو په رسولو کې مرسته کوله،هم دا وجه وه چې کله دیرموک جنګ پیښ شو او له امله یې مسلمانان د"حمص" ښارنه وتل، یهودان ورته تورات په لاس راغلل، وې ویل: په دې تورات سوګند، څو چې مونږ ژوندي یو،هیڅکله به رومیان دلته راپرینږدو،مه ځئ!عیسایانو په ډېر زیات حسرت وویل: په خدای سوګند درومیانو په نسبت له تاسو سره زمونږ محبت څو واره ډېر دی (الفاروق ۲ټوک ۱۲۰مخ)

دغور کولو ځای دی،چې دجنګ نه داسلام غرض بې امنې او انارشیزم له منځه وړل دي، په عدل انصاف د برابر حکومت جوړول دي، که دا نه وای، نو دهغه ځای خلکو به دخپل دین او مذهب خلکو پرضد له مسلمانانو سره ملګرتیا نه کوله؟ یا ولې به یې د دومره مینې او جذبو نه دډک محبت اظهار کاوه؟

## دوعدو!پوره کولو تاکید:

اسلام په جنګ کې دکومو څېزونو په اړه کلک تاکید کوي،له هغو نه یو دوعدو پوره کول دي،بلکې په عامو حالاتو کې هم دوعدو سرته رسول د مسلمان دایمان لازمي جزء او نښه ده، وعده خلافي یا عهد ماتول دمنافق خاصه ده (ریاض الصالحین: ۲۹۳مخ)

دوعدې او عهد لحاظولو او په کلکه توګه پوره کولو په اړه الله (جل جلاله) فرمایي:

وعدې سرته رسوئ، ولې په اړه یې پوښتنه کېږي!

چې په عامو حالاتو کې اسلام دوعدې پوره کولو په اړه دومره کلکه غوښتنه اوحکم کوي، نودجنګ حالت کې یې اهمیت دوه واره زیات دی، له دې وجې په خاصه توګه دجنګ په دوران کې اسلام تاکید کوي، چې که دښمن دوعدې نه سرغړونه وکړه او که نه،دمسلمان لپاره روانده چې هغه دخبر ورکولونه مخکې، ددښمن په لور پرمختګ پیل کړي،یا دوعدې او عهد ماتولو داطلاع ورکولو نه وړاندې پرهغه برید وکړي،بلکې ددښمن له لوري دوعدې ماتولو سربیره هم دمسلمانانو لپاره ضروري ده، چې اول په صفا او ښکاره الفاظو کې دوعدې دپای ته رسولو اعلان وکړي، بیا دهغه وروسته د جنګ اجازه لري!!

الله (جل جلاله) فرمایي :او که ویرېږې (اې محمده) له کوم قوم (چې وعده یې کړیده له تاسره) دخیانت نو وغورځوه دوئ ته (دغه عهد) په (داسې ډول اوطریقه) چې شئ تاسې او هغوئ برابر؛بیشکه الله نه خوښوي خیانت کوونکي (الانفال: ۵۸)

په دې ایت کې دقانون یوه اهمه ماده راوړل شوې، په کومه کې چې دعهد او وعدې خاص اهمیت ښودلو ترڅنګ دا ښوونه هم شوې، چې که کوم وخت دمعاهدې په وخت کې بل فریق له اړخه دخیانت اندیښنه وه، بیا ضروري نده چې مونږ به په هغه عهد ټینګ ولاړ یو! خو داهم روانده چې په پوره



توګه دعهد او لوظنامې دپای ته رسيدو وړاندې مونږ پرهغوئ هجوم وکړو ،بلکې صحيح صورت دادی چې د اطمينان او فرصت په حالت کې هغوئ دې خبر کړای شي،چې مونږ ستاسو د بدنيت او ارادې څخه خبرلرو! يا داچې ستاسې معاملات مونږ ته مشتبه ښکاري! لـه دې وجې پـه راتلـونکي کې مـونږ دشوي لوظنامې يا موافقې په لحاظولو مکلف نه يو! او تاسو ته هم هرډول اختيار دی چې زمونږ پرخلاف هر څه کول غواړئ! وي کړئ!

دې لړ کې مفتي محمد شفيع (رحمه الله) يوه ښه په زړه پوري واقعه راوړي چې :حضرت معاويه (رضي الله عنه) له يو قوم سره تريوې مودې دجنګ بنديز موافقه کړې وه، معاويه (رضي الله عنه) اراده وکړه، چې په منځ کې دشته فرصت نه په ګټه خپل لښکر او جنګي تـوکي، دهغـه قـوم پـه لـور نيـږدې يوسي، څـو دتړاکلي وخت په پای ته سيدو پردښمن سملاسي حمله وکړي،خو په عين هغه وخت کې چې معاويه (رضي الله عنه) لښکر هغه لور ته روان کړی و، په اس باندې يو سپور سړی له ليري نه په لوړ غږ داناره وهله : الله اکبر الله اکبر وفاءً لاغدرًا يعني دتکبير د ناري ترڅنګ وايي : مونږ بايد کړي وعده ماتـه نکړو،رسول الله (ﷺ) فرمايلي:چې کوم قوم سره دصلحې او جنګ بنديز موافقه يا وعده و شي، دهغه پرخلاف دې نه کومه ګنډه خلاصيږي او نـه دې تړل کيږي، حضرت معاويه (رضي الله عنه) چې خبر شو او وي ليدل چې وينا کوونکی مشر صحابي حضرت عمروبن عنبسه (رضي الله عنه) دی،ژر يې دليږل شوي لښکر دبيرتـه ګرځولو حکم ورکړ! څو دشوې وعدې په موده کې د لښکر ليږل په خيانت کې شمارنشي (معارف القرآن ۴ټوک ۲۷۰مخ)

## جنګي بنديانو سره درحم و کرم معامله:

نړۍ کې چې څومره قومونه اوسلطنتونه تيـر دي، دجنګي بنديانوپـه اړه ټـول ډېـر وحشـيانه او ظالمانـه تـاريخ لـري، نـن غربـي هېوادونـه هـم دجنګي قيديانو سره نهايتي ظالمانه رويه او وحشيانه سلوک کوي، دهغوئ د اوسنو ظلمونو ښکاره مثال ګوانتانامو بې او دابو غريب بـدنام زندانونـه دي، چې هلتـه يې په بنديانو دومره وحشيانه ظلمونه کړي، چې په ليدلو يې د هـر ليـدونکي لـه زړه وينـې څـاڅي، خـو ددې ترڅنـګ راځـئ دجنګي بنـديانو سـره داسلام عادلانه سلوک،لږ پرتله کړو:

په بدر جنګ کې ۷۲ بنديان، رسول الله (ﷺ) ته په لاس ورغلل، چې د۷۰ بنديانو د پريښودو بدل کې رسول الله (ﷺ) فديـه قبولـه کـړه او ازاد يې کړل، هغوئ سره دبند په موده کې دميلمنو پشان رويه کېده، دمـدينې خلکـو دهغوئ ښـه ميلمـه پالنـه وکـړه ، دخپلـو ماشـومانونه يـې هـم زيـات دهغوئ مدارات وکړ ،يوځل رسول الله (ﷺ) دبدر بنديانو څخه دکوم يو دتکليف نه ډک غږ ترغوږ شو،له امله يې ټوله شپـه خـوب ورنغلو ، کله چې درسول الله په حکم ټول بنديان ازادشول، هيله په راحت شو،دبدر له نورو ټولو بنديانو فديه اومنل شوه،يوازې دوه تنه (عقبه بن معيط اونضربن حـارث دخپلو نه بښونکو جرمونوپه وجه ووژل شول) دبدر وروسته "بني مصطلق" غزوه کې له سلو زيات نارينه اوښځينه بنـديان راغلل،رسول الله هغوئ پرتـه له کوم شرط اوجرمانې ازاد کړل،په حنين جنګ کې شپږزره نارينه او ښځينه بنديان شول، ټول يې پرتـه د کـوم شـرط اوعـوض نـه ازاد کـړل، تـردې چې دځينو بنديانوپه بدل کې خپله رسول الله (ﷺ) د بنديانو نيو ونکو ته فديه ورکړه،آن تردې چې ځينـو بنديانوتـه يـې تحفې او انعامونـه ورکـړل ، پـر مسلمانانو يرغل کوونکي دښمنان پخپل ټول تاريخ کې دبنديانو سره دداسې سلوک ،رحم او عـاطفې مثالونـه نشـي وړانـدې کـولی ، درسـول الله دهمداسې سپيڅلو لارښوونو نتيجه وه چې دراشدينو خلفاوو دوره کې چې کله عراق، مصر ، شام، ايران اوخراسان (افغانستان) پشـان لـوی اومتمـدن هېوادنـه فتحـه شول، په هيڅ يو ښار دکوم جنګيالي له لوري ديو چا غلامولو يا وينزه ګرځولو ذکرندی راغلی، بلکې مغلوب دښمن څخه دجنګ دتـاوان پـه نـوم هـم دڅـه اخستلو ذکر نشته (رحمة للعالمين ۱ټوک ۲۱۲مخ)

دېورته ليکنې ددلايلو په رڼا کې داخبره روښانه شوه، چې داسلام جنګي قانون دربشتينې امنيت او سولې ضـامن دی، دردیـدلې اوزوریـدلې بشـر لپـاره که په نړۍ کې کوم ځای دپناه نيولو اونجات دی، هغه داسلامي لارښوونو لاندې ژوند تيرول دي، کنه داټولې روانې ناخوالې او بدمرغۍ به هـم داسـې دهـر چا ترشا روانې وي او په نړۍ به دجنګونو، فتنو اوفسادونو راج خور وي!

(ددارلعلوم ديوبند دمياشتنۍ مجلې نه په مننه)



## د فارياب جهادي مسؤل قاري صلاح الدين :

# د شرعي قانون د تطبيق، تعليم او تربيې او نورو خدمتونو لپاره ځانګړې ادارې لرو

### درنو لوستونکو !

فارياب دافغانستان په شمال کي موقعيت لري چي له جوزجان سرپل غور او بادغيس ولايتونو سره ګډه پوله لري دفارياب شمالي سيمي دمنځنۍ اسياله ترکمنستان جمهوريت سره نښتي دي دفارياب ولايت مرکز دميمني ښار دی او نوري ولسوالۍ په لاندي ډول دي .پشتون کوټ ،خواجه سبزپوش (جمعه بازار) شرين تګاب ،دولت اباد،اندخوی ،شاخ ،قرم قل ،خان چارباغ ،المار ،قيصار ، قرغان ، بندر ،ګورزوان ،بلچراغ ،خواجه موسی ،لولاش .

سږ کال د خيبر عملياتو په لړ کې مجاهدينو دفارياب په ولايت کې هم د پام وړ لاسته راوړني درلودلې ، په دې ولايت کې ګڼ شمير سيمې ددښمن له شتون څخه پاکې شوي دي او داسلامي امارت تر تسلط لاندې راغلي دي .

قاري صلاح الدين چې دفارياب ولايت د المار ولسوالۍ اوسيدونکی دی او له څو کلونو راپديخوا د فارياب ولايت مسؤليت په غاړه لري په دې ولايت کې د سږنيو پرمختګونو په اړه مو ورسره مرکه کړې چې ستاسو توجه ورته راګرځوو.

پوښتنه

محترم قاري صاحب ! هر کلی درته وايو ، که لومړی د خيبر د سږنيو عملياتو په لړ کې په فارياب کې دترلاسه شويو فتوحاتو او بريا وو په اړه معلومات راکړئ ؟

ځواب

الحمد لله وکفی و الصلوة و السلام علی عباده الذين اصطفی امابعد ، تاسو او ټولو لوستونکو ته سلام او نيکې هيلې وړاندې کوم، بايد ووايم چې د پخوا غوندې سږ کال هم په فارياب کې د جهادي عملياتو نتائج خورا په زړه پورې و، په نظامي برخه کې که د ټولو لاسته راوړنو په اړه خبرې کوو، شايد دا مرکه يې حوصله ونلري، خو په لنډو به د وروستيو لاسته راوړنو يادونه داسې وکړم .

د شاخ په ولسوالۍ کې مجاهدينو سږ کال څو د پاموړ عمليات ترسره کړل، د تهاجمي عملياتو په لړ کې ددې ولسوالۍ دوه مهم بازارونه چې پخوا ددښمن په سلطه کې وه د مجاهدينو تر واک لاندې راغلل، دښمن ددې ولسوالۍ د بيا نيولو لپاره بيا بيا کوښښ وکړ چې هر ځل يې عمليات له ناکامي سره مخامخ شول، په دې ولسوالۍ کې اوس مجاهدين قوي حضور لري،او حتی نورو سيمو ته ترې عمليات رهبري کوي .



د بندر په ولسوالۍ کې مجاهدينو د اربکيانو او محلي مليشې د شړلو لپاره ستر عمليات وکړل، په دې عملياتو کې شپږ سوه مجاهدينو برخه درلوده چې په نتيجه کې يې د دې ولسوالۍ پنځه نوي فيصده سيمه د دښمن له شتون څخه پاکه شوه، د دې ولسوالۍ څخه د اربکيانو ټغر مکمل ټول شو، او ټولې اطرافي سيمو د مجاهدينو تر تسلط لاندې راغلې چې اوس الله الحمد له ښه امنيت څخه برخمنې دي .

د کوهستاناتو د سيمې مربوط په المار ، قيصار او پښتون کوټ ولسواليو کې هم ستر عمليات وشول، بايد ووايم چې د دې سيمو هم ۹۵ فيصده سيمې د مجاهدينو تر تسلط لاندې راغلې دي، او د دښمن ګڼ شمير پوستې فتحه شوې دي.

دغه راز په ګورزيوان ، خواجه موسى او چهلګزي ولسواليو کې هم مجاهدينو د پام وړ عمليات ترسره کړي دي، د دې عملياتو هم ډيرې سيمې له محلي مليشو او اربکيانو څخه تصفيه شوي دي ، په دې ټولو عملياتو کې لله الحمد زموږ تلفات خورا کم و، سره له دې چې دښمن د خپل شکست د پټولو لپاره هميشه د ډيرو تلفاتو آوازې خپرولې و خو واقعيت هغسې نه و چې دښمن يې په ميډيا کې په اړه ويل ، مثلا د چهلګزي په ولسوالۍ کې په يوه اوږده جنګ کې چې دښمن ته ډير تلفات ورسيدل زموږ يوازې يو تن شهيد او څلور تنه نور زخميان وو خو دښمن په راډيو ګانو کې د ۱۴۰ تنو مجاهدينو د له منځه وړلو تبليغات خپرول .

پوښتنه

په فارياب ولايت کې له مجاهدينو سره د ولسي خلکو خواخوږي او ملاتړ څرنګه دی که په دې اړه معلومات راکړئ ؟

ځواب

د نور افغانستان غوندې په فارياب ولايت کې هم ولس د مجاهدينو ترڅنګ ولاړ دی، په لومړنيو کلونو کې ځينې خلک د دښمن د تبليغاتو تر اثر لاندې راغلي وو اما اوس ټول اولس په ډير اخلاص د مجاهدينو ملګری دی، سږ کال چې موږ کوم ستر فتوحات درلودل ، ټول دا ولس د همکارۍ نغد ثبوت دی.

په دې سربيره چې په ولسواليو کې خلک د مجاهدينو ملګري دي حتی په مرکز ميمنه ښار او نور مرکزي سيمو کې ۹۰ فيصده خلک د مجاهدينو خواته ميلان لري، د ښارونو خلک د حکومت له ظالمانه کړنو، بې انصافي، اداري فساد غصب او نورو بدو کړنو څخه تر پوزې رسيدلي دي، بيا بيا يې د حکومت په ضد مظاهرې کړې دي، خلک د حکومت له کړنو په تنګ شوي دي او د مجاهدينو او شرعي نظام په اړه ډير خوشبينه دي .

پوښتنه

له نظامي عملياتو پرته که په فارياب ولايت کې د اسلامي امارت د مجاهدينو د نورو فعاليتونو په اړه معلومات راکړئ چې آيا نور فعاليتونه شتون لري ؟

ځواب

بلې لکه څنګه چې خبرياست اسلامي امارت په ټولو هغو سيمو کې چې تر تسلط لاندې يې لري، د شرعي قانون د تطبيق ،تعليم او تربيې او نورو خدمتونو لپاره ځانګړې ادارې لري، په فارياب ولايت کې هم په ټولو مفتوحه سيمو کې د همدې اداراتو فعاليتونه جريان لري، مثلا د محاکمو، جلب و جذب ،تعليم و تربيې او نورو ټولو برخو اړوند فعاليتونه جريان لري.

د معارف په برخه کې په فارياب کې په ټولو سيمو کې مدارس، مکاتب ، دارالحفاظونه او نور تعليمي مراکز فعال دي، اسلامي امارت د دې مراکزو اصلاح ته زياته توجه کوي ترڅو مو نوی نسل په ديني فکر وروزل شي ،د دعوت او ارشاد په برخه کې خلکو ته په رهنمايي سربيره د دښمن په صف کې ولاړو کسانو ته هم دعوت جريان لري په تيرو څو مياشتو کې په فارياب کې ترسلو زيات اربکيان او نور ټوپکوال چې مخکې د دښمن سره په صف کې ولاړ و د مجاهدينو خواته راغلي او له مخالفت څخه يې لاس اخيستی دی .

دغه راز د اطلاعاتو او خبررسانۍ په برخه کې زموږ فرهنګي ملګري په ډير دقت سره د جهادي جبهاتو خبرونه راټولوي او بيا يې د نشر لپاره د اسلامي امارت خبري مراجعو ته استوي، د بنديانو د چارو په برخه کې د پام وړ نظم او ترتيب رامنځته شوی دی، د مجاهدينو لخوا چې د دښمن



کوم بندیان نیول کیږي دهغو لپاره ځانګړي محبسونه جوړ شوي دي، پرته له سختی او ظلم له هغوی سره شرعي چلند کیږي، قضایا یي شرعي محکمې ته راجع کیږي او دشریعت په رڼا کې ورسره تعامل ترسره کیږي .

تراوسه پورې چې داسلامی امارت د مشرتابه لخوا کوم هیئتونه فاریاب ولایت ته راغلي دي او د مجاهدینو بیلابیل فعالیتونه یي لیدلي دي، هغه یي بریالي بللي او د خوشالۍ اظهار یي کړی دی، چې له همدې ځایه موږ په فاریاب کې دمجاهدینو فعالیتونه مثبت او بریالی بللی شو.

پوښتنه

په فاریاب کې له څو کلونو راهیسې ددښمن ملیشې یا اربکیان فعال وو دغه راز دښمن په اطرافي سیمو کې ځیني عملیات هم ترسره کړل، داسې ویل کیدل چې دښمن په دې عملیاتو کې ولسي خلکو ته سخت زیانونه اړولي دي که ددښمن ددې مظالمو او وحشیانه چلند په اړه معلومات راکړئ ؟

ځواب

لکه تاسو چې یادونه وکړه ،په فاریاب ولایت کې ربښتیا هم په تیرو څو کلونو کې دښمن د مؤمن مظلوم اولس په وړاندې سخت مظالم سرته رسولي دی، خو په لومړیو کې یوازې خودسره ملیشو، بهرنیو عسکرو او داخلي پولیسو خلک ځورول ، کورونه یي تلاشي کول او خلک یي وژل ، په وروستیو څو کلونو کې د اربکیانو د فتنې په راپیدا کیدلو سره د خلکو د ځور او اذیت لړۍ ډیره چټکه شوه، اربکیانو داسې ظلمونه سرته ورسول چې له خلکو یي دپخوانیو ملیشو مظالم هیر کړل، دوی نه یوازې خلک ووژل، لوټ یي کړل بلکې سلامت کلي یي داور په لمبو کې وسوزول .

دبیلګې په توګه دوی د پښتونکوټ په ولسوالۍ کې ګڼ شمیر کورونه وسوزول ، حتی د ښځو او ماشومانو په شمول بې وسلې ولسي خلک یي په ډزو ووژل ،د پښتون کوټ ولسوالۍ په قره وایلي، چوبکي او نورو سیمو کې دوی دخلکو شاوخوا ۸۰ کورونه له چورتالان څخه وروسته وسوزول چې ددښمن ددې ظلم ځیني مستند شواهد د الاماره سټوډیو لخوا په نشر شوي ویډیو کاروان خیبر کې چې د فاریاب ولایت په اړه ده راغلي دي .

ددښمن بې جلبه عسکرو او اربکیانو نه یوازې خلکو ته د سراومال زیانونه رسولي بلکې ډیر ځله خو دې وحشیانو دخلکو په عزت او ناموس هم تیری کړی دی، چې ددوی لخوا د جنسي تیریو د شنیعو افعالو خبرونه بیا بیا په رسنیو کې هم راغلل، ددښمن همدا وحشیانه اعمال ددې سبب شوي چې عام اولس ته ددښمن اصلي ماهیت بربنډ شي او اولس له حکومت څخه متنفر شي .

پوښتنه

لکه تاسو چې خبریاست په افغانستان کې د امریکایانو تر اشغال لاندې نوې حکومت په دنده شروع کړې ده، او په سیاسي ډګر کې لوی تحول راغلی دی غربي مطبوعات ددې نوي تحول لپاره ډیر تبلیغات کوي او مثبت یي ارزوي تاسو دغه نوي تغیر ته په کوم نظر ګورئ ؟

ځواب

په کابل کې چې کوم حکومت راغلی، زما په نظر هسې په ظاهره به یې د سر کوم خلک تبدیل شوي وي خو په حقیقت کې دهماغه زاړه حکومت دوام دی، په دې سیاسي تغیر کې د پام وړ نقطه دا وه چې دامریکایي اشغال ماهیت ډیر ښه په کې روښانه شو.

هیوادوالو ولیدل چې له تیر یوه کال راهیسې د انتخاباتو اوازې خپرې وې، په سلګونو ملیونو ډالر مصرف شول،خلکو ته سخت ډیر مشکلات ایجاد شول، دښمن هڅه کوله چې افغانان وغولوي او ظاهرا د یوه قانوني حکومت درامنځته کولو پروسه تمثیل کړي، خو په اخر کې الله تعالی دښمن وشرماوو او ټولو هیوادوالو ولیدل چې حکومت دامریکا دبهرنیو چارو د وزیر جان کیري لخوا وټاکل شو، د یرغلګرو هغه ګوډاګیان چې د خپلواکۍ دعوه یي لرله ، غلام ماهیت او ګوډاګیتوب یي ډیر ښه راښکاره شو، موږ ولیدل چې دوی د ناڅکو غوندې امریکایانو راوستل او په زور یي په ګډ حکومت کې سره یوځای کړل .



له امريکايي انتصاب وروسته ددې نوي ګوډاګي حکومت تر ټولو بد اقدامات له امريکا سره د ستراتيژيک تړون لاسليک او ځينی نور دين دښمنه اقدامات و، دې ته په پام سره بايد دافغانستان خلک نوي حکومت ته هم دپخواني رژيم په سترګه وګوري چې يوازې ديرغلګرو د ګټو لپاره انتصاب شوی دی، په نوي حکومت کې جنرال دوستم چې ځان د شمال دخلکو استازی بولي ، ددوهم مرستيال په حيث ټاکل شوی دی ،دافغانستان خلک بايد دنومونړي پخوانيو جناياتو ته په پام سره دخير تمه ترې ونکړي ،چا چې په ټول ژوند کې له چور چپاول ، قتل ، ظلم او دکفارو له غلامي پرته بل څه نه وي کړي له هغه به څه د خير تمه وشي .

د افغانستان خلک بايدخپل دين ته په ژمنتيا سره خپل يووالی وساتي ، ديرغلګرو په بې بنياده تبليغاتو ونه غوليږي ، دکفر په وړاندې بايد د جهاد ډګر ته راووځي تر څو دالله تعالی دنصرت او خپل منځي يووالي په برکت کفري يرغلګرو ته شکست ورکړي او له افغانستان يې وباسي .

پوښتنه

داسلامي امارت د فرهنګي کميسيون د چارو او نشراتو په اړه مو نظر دی ، که خپل تأثر او مشورې راسره شريکې کړئ ؟

ځواب

ډير د شکر او دوياړ ځای دی چې لله الحمد دافغانستان اسلامي امارت د مبارزې په ټولو برخو کې ښه ځليدلی دی او ددښمن مقابله يې په احسنه طريقه ترسره کړې ده ، په دې لړ کې دفرهنګ او مطبوعاتو په برخه کې کارونه ډير ښه روان دي ، زه خپله داسلامي امارت نشرات لکه الاماره ويب پاڼه چې په ګڼو ژبو نشرات کوي، دغه راز الصمود، څرک ، حقيقت ، شهامت ، شريعت او مورچل مجلات ګورمه چې ډير ښه مضامين او دجهاد په اړه تازه خبرونه او مطالب په کې نشريږي .

زما ټولو مجاهدينو وروڼو ته داتوصيه ده چې له مطبوعاتو سره علاقه وساتي، مجلات مطالعه کړي، اوله پرمحتوا مطالبو يې استفاده وکړي ،هغه مجاهدين چې په فرهنګي برخه کې په خدمت بوخت دي او زحمات تيروي له الله تعالی څخه ورته پوره پوره اجرونه غواړم .

پوښتنه

محترم قاري صاحب که په پای کې د فارياب ولايت د اوسيدونکو يا عام مؤمن اولس په نامه څه پيغام لرئ هيله ده راسره شريک يې کړئ .

ځواب

د فارياب ولايت اوسيدونکو او خپل ټول مؤمن اولس ته مې پيغام دادی چې لله الحمد دالله تعالی د نصرت او مجاهدينو دقربانيو په برکت د جهاد قافله د فتحې منزل ته نږدې شوې ده ،له دوی څخه مې غوښتنه ده چې له مجاهدينو سره مرستې او ملاتړ ته ادامه ورکړي او هغه چې په جهاد کې يې شرکت نه دی کړی بايد له مجاهدينو سره يوځای شي .

هغه کسان چې ددښمن د زهرجنو تبليغاتو له امله غوليدلي او ددښمن صف ته ورغلي ، دوی بايد له وطن فروشي او خيانت نه لاس واخلي،دوی بايد مجاهدين وپيژني چې دهمدې مؤمن اولس زامن دي، نوځکه بايد کافرو دښمنانو تبليغات ونه مني ،دغه کسان بايد په خپل ځان رحم وکړي د خپلې دنيا او عقبی د نجات لپاره بايد هڅه وکړي، دکفر له مزدورۍ لاس واخلي ،د مجاهدينو غيږه ددوی په مخ خلاصه ده او هميشه ورته هر کلی وايي .

د فارياب خلک شاهدان دي چې مجاهدينو بيا بيا هغه عسکر چې په جګړه کې نيولي له لازمو هداياتو وروسته يې بيرته پرې ايښي دي له دې څخه بايد دوی وفهموي چې مجاهدين يوازې دخلکو دوژلو لپاره نه دي راپورته شوي ، بلکې د خلکو اصلاح غواړي د کفر له صف څخه يې راګرځوي او د خلکو دنيا او اخرت د سعادت لپاره هڅه کوي .





# هندوستان کې دمشرقيت اومغربيت ...

ليکوال داسلامي نړۍ مفکر عالم مولانا سيد ابوالحسن علی ندوی رح

ژباړه : ابو ظهير — ۱۳ برخه

## داسلامي تجربې نوی ځای

### ددیني رهبرۍ نازک مسولیت !

اوس چې پاکستان د کوم ډول افسوس ناک حالت سره مخ دی، کابو کېدای شو، یالږ ترلږه په اغېز کې يې کمښت راتلی شو،په نوي باسواده نسل او واکمنو کړیو کې داسلامي دعوت اوفکرلپاره لوی شمېر ملاتړ پیدا کول اسان و، هم د پخوانۍ اونوې ډلې ترمنځ کوم واټن يا خليج پيدا شوی هغه ليري کېدای شو، د دواړو ډلو په يو ځای ملتيا سره هغه لویه ازموینه ترسره کېدای شوه! دکومې لپاره چې پاکستان جوړشوی و !! که داسلامي فکر علمبردار انو دخپل هوښيارتوب اوژورې پوهې په جوهر ښودو دهېواد دبېلابېلو قشرونو د باور ترلاسه کولو او دهغه ذهني اوفکري خلاء په ډکولو بريالي شوي وای،دکومې په وجه چې نوی نسل ورخطاء او اندیښمن ښکاري !! دا هغه مهال شوني و، چې داسلامي فکر علمبردارانو او داعيانو په کامل صبر او استقامت خپل شته استعدادونه او صلاحيتونه په شريکه داسلامي ژوند قبلوونکو زړونو او ذهنيتونو روزلو او د ځوان نسل ذهني او روحاني تسکين لپاره وقف کړي وای، له نورو ګردو ميدانو بيرون دخپلو هڅو او کوښښونو لپاره يې فقط همدايو ميدان ټاکلی وای !! واقعاً به په دې کار سره پاکستان ته يوه داسې ديني رهبرۍ اوقيادت په نصيب شوی و ، چې دهغه په قايدانه شخصيت کې به دزړونو اړولو له ځان سره يوځای کولو هنر سربيره دعلمي تفوق، لوړ ذهني استعداد، زړه سواندحرارت، ژور او اغيزناک روحانيت پشان صفات وای !! چې له هرې شبهې ، شک او د ګردو سياسي اختلافاتو ليري وای، غرض دا که پاکستان ته هغسې رهبر په برخه وای دکوم تعريف چې اقبال پخپل شاعرانه ليد داسې کړی:

نګاه بلند،سخن دلنواز، جان پرسوز — يهی رخت سفر مير کار وان کيلی.

نودشک پرته به دغه اسلامي هېواد دنورې اسلامي نړۍ لپاره يوه غوره نمونه او يومثال و....

څېړنه:

اروابناد ندوي صاحب (رحمه الله) پورته مضمون په ۱۹۷۰ز کال کې ليکلی ،هغه مهال د پاکستان واکمن جنرال محمدايوب خان و، دهغه وروسته پکې ځينې مهم بدلونونه راغلل، ايوب خان د واک نه لاس په سر شو، پاکستان په دوه برخو وويشل شو، ختيځ پاکستان دبنګله ديش په نوم ځانته ازادي اعلان کړه، مجيب الرحمن دهغه ملي مشر غوره شو، د ذولفقار علي بوټو په حکومت کې کورني جنجالونه او اداري فساد ونه پراخ شول، پارلماني ټاکنې و شوې، خو په کې دټګيو ،برګيو او جعل کاريو تورونه پوري شول، د مولانا مفتي محمودرح اونور سياستوالو لخوا دقومي اتحاد په نوم تحريک پيل شو، په هغه کې خلکو لوې قرباني ورکړې،بالاخر جنرال ضياء الحق د يوځي کودتا د لارې بوټو حکومت ړنګ کړ، هغه خپله په واک مونګلي خښې کړې،په دې سره يوه نوی دور



پیل شو، ځیني اسلامي قوانین پلی شول، قضائیه خپلواکه شوه، په حکومت او ټولنه کې یوشمیر بدلونونه رامنځته شول، دهغو له امله دیني ګوندونه هم لږ ډېر تقویه شول.

## جماعت اسلامي :

جماعت اسلامي په نوم ګوند پاکستان کې اسلامي قانون او اسلامي نظام پلی کول غواړي، په پیل کې ډېرو تمه درلوده، چې دغه ګوند به داسلامي نظام لپاره دپام وړ خدمتونه وکړي، د ګوند بنسټ ایښودونکی مولانا سید ابو الاعلی مودودي د ځینو صفاتو خاوند و، نوموړي په دي سربیره چې د ځواکمن قلم او قوي اسلوب څښتن و، دلویدیځ د نویو فلسفو او علومو نه هم خبرو، هم یې د اسلامي لاربښوونو سره سم په اسلامي ژوندانه عقیده وه، هغه په غربي تهذیب او افکارو د تنقید لړ کې چې کومې نیوکې کړي هغه بامعنی دي، هم یې دلیکلو اسلوب د مدافعانه لهجې اوطرز نه لیري و، کوم چې ددې دور دمسلمانو قلموالو ځانګړتیا ګرځیدلې ، هغه په ځینو مسایلو او متکلمانه سیاسي مباحثو داسې مضامین ولیکل، چې دهغو په وجه یې د هندوستان په اسلام پالو کړیو کې مقبولیت ترلاسه کړ، او له امله یې ډېر خلک دهغه دشخصیت په لور متوجه کړل، دهمدې تاثر په نتیجه کې دجماعت اسلامي په نوم د ګوند بنسټ کیښودل شو، هغه خلک چې دهغه دقلم نه متاثر وو، ورسره یوځای شول، دپاکستان جوړیدو نه وروسته دجماعت اسلامي ټول قیادت له هند نه پاکستان ته منتقل شو، کوم چې داسلامي فکر لپاره دهند په نسبت موزون ډګر و، خو په ځینو فقهي او کلامي مسایلو کې دهند اوپاکستان دسترې اوموثرې دیني حلقې سره په تحقیق او تعبیر کې دټکرراتلو په وجه او هم دجماعت لخوا عملي سیاست ته د ورانګلو په وجه او څه دهغه پر ضد دهغو عناصرو په یوځای کیدو چاته چې په اسلامي نظام او اسلامي دستور کې دخپلو ګټو او سیاست زیان ښکاریده، بل جماعت اسلامي ډېرځلي دکورنیو او بهرنیو انتشارونو سره مخ شو، دجماعت دلومړي صف مشرانو ترمنځ دنظرو نو جلا والي او اختلاف په وجه هغه ګڼ شمیر خلک چې دجماعت په معمارانو اوفکري استادانو کې شمار ول ګوښه کېدو ته اړیستل شول ،هم دوختي حکومتونو لخوا د خنډونو جوړولو جماعت اسلامي دخپل دعوت پراخولو په کار کې ټکنی او د سختو ستونزو سره مخ کړ.

جماعت اسلامي د سیاسي کړنو اوتنظیمي چارو له امله هغه علمي او تحقیقي کارونو ته دوام ورنکړای شو، کوم چې په اصل کې ددي ګوند دشهرت لامل شوی و، په نړۍ کې دځینو فلسفو اونظامونو په اړه دنویو محققانه کتابونو لیکلو ته اړتیاوه، کوم ته چې ځوان نسل تږی ناست و. خودپاکستان کورنیو حالاتو او دجماعت سیاسي کړنو مهلت ورنکړ چې دیادو موضوعاتو په برخه کې کوم علمي ګام پورته کړي.

په هر صورت لاملونه چې هرڅه وو، واقعه داده چې ددي ګوند په وړاندې دخالص دیني او داعي کردار اداء کولو په وړاندې ګڼ موانع پیدا شول، اوس هم دبې غرضه دیني دعوت اوخدمت سرته رسولو په وړاندې ستونزې شتون لري، دهغونه دوتلو لپاره دیو دیني داعي او مصلح مشرتابه لپاره قوي عزم، قربانۍ او انقلابي ګام پورته کولو اړتیاده. ولعل الله یحدث بعد ذلک امرا.

څېړنه:

دمولانا مودودي او دهغه دګوند په اړه اروانباد مولاناندوي (رحمه الله) پورته لیکلي اندونه د۱۹۷۰کال په پای کې لیکلي، دیادونې وړده پیل کې پخپله ندوي صاحب رح نه یواځې دمولانا مودودي په لور مایل و، بلکې له هغه سره دجماعت اسلامي په مخکښو بنسټ ایښودونکو کې و، خو پېښه دا وه چې دواړه دمزاج، ذوق او مسلک له پلوه د یوبل نه په واټن کې ول، څنګه چې دشام اوعربي نړۍ محقق عالم شیخ مصطفی السباعی پر دواړو دتبصرې لړ کې فرمایل: "المودودی رجل عقلی والشیخ الندوی رجل روحانی" په مودودي عقلیت غالب دی اوپه ندوي روحانیت! ددي حساس نزاکت په وجه مولاناندوي خپل مسیر له هغه نه بدل کړ او هم یې د مولانا له هغو ټولوڅېړنو اولیکنو څخه چې د اهلسنت والجماعت دجمهورو مسلک سره په ټکر کې راځي، نه یواځې پخپل برأت اعلانولو اکتفاء وکړه، بلکې دمولانا په هغو څېړنو اونظریاتو یې ښه جامع ،مدلل ، عالمانه اوفاضلانه نقد ونه هم ولیکل، چې د ذوق خاوندان یې دنوموړي د ستر علمي میراث په کتابتون (کتابونو) کې کتلی شي

نوربیا

# دلوګر اربکيانو، په تابوت ، ورستی ميخ ټک وهل شو

خسر احمد مجاهد

مهلت او يا استدراج ، هغه الهي سنت دی ، چې دظالمانو اومستکبرينو په زندګي کې مقرر کړل شوی اودهمدغه الهي سنت اوحکمت له مخې، هغوئ تريوې مودې پورې په دې دنياکې له ښې دبدبې ، وسعت او مالا مالو امکاناتوسره پريښودل کيږي ، ترڅو په کفراوګمراهی کې په تدريج سره ورستی پوړی ته ورسيږي اوبيايې په اخيرکې الله تعالی کلک اوسخت رانيسي او عبرتناکه سزا ورکوي.

الله تعالی په عظيم الشان قران کې فرمايي : «ولايحسبن الذين کفروا انما نملی لهم خير لانفسهم انما نملی لهم ليزدادوا اثما و لهم عذاب مهين؛) (۱۷۸) آل عمران( يعني ، ګمان دې نکوي ، هغه کسان چې کفريې کړی په الله تعالی ، چې دوی مونږ پرې ايښې اومهلت مو ورکړی ، ددې لپاره چې داکار ګواکې دهغوی لپاره خيردی ، بلکې مهلت اووخت مو ورکړی ، ددې لپاره چې ددغو کفارو اوظالمانو طغيان اوسرکشي ، ډيره شي اواستدراج ته ورسيږي اودوی لره بيا شته عذاب اوانجام دردناک !

خبره مو ، دلوګر ولايت داربکيانو کوله ! که څه هم دهيواد په يوشمير نورو سيمو اوولايتونوکې هم دغه ظالمان او دالله ددين دښمنان ،چې عام ولس يې اربکيان بولي ، له څو نيږدې کلونو راهيسي راښکاره شوي ، اوامريکايانو فکر کړی وو چې دخپلې ناولې کمپلې له تړليدو ورسته به له افغاني عفت او حرمت څخه دهمدغو کرغيړنو اولوغړنو په توسط انتقام واخلي ، نوځکه يې په هرولايت کې هغه مختورې اوناترسه ځيرې چې ضميرونه يې له اسلام اوافغاني غرور څخه خالي اومينځل شوي وو اوپه ډول ډول اخلاقي جرمونو ملوث وو ، سره راټول اوداربکيانو ډلې اوباندونه يې ترينه جوړ کړل.

امريکايانو ، هغوئ ته ، نوې وسلې ، رنجنر موټر ، لوړ معاشونه اونور استخباراتي تجهيزات په لاس ورکړل ، په هغو برسيره يې دهرراز بې بندوباريو اووحشي کړنو صلاحيت هم ورکړ ، چې ، نه څوک پوښتنه درنه کولای شي او نه موڅوک مخه نيولای شي !

ترکومه ځايه چې امريکايي فکر اوسوچ وو ، چې په اربکيانو به ، لکه دعراقي مليشو او کردي باندونو ، دافغانانو ترمنځ نوی اوربل کړي اومتدين افغانان به پرې وټکوي ، دالله تعالی په خاص نصرت اولورينې ، داربکيزم امريکايي پروژه ، په افغانستان کې له ډيرو سيمو اوولايتونو څخه ډير ژر ټوله ، ورکه اوياهم ښه وځپل شوه ، لامل يې داوه چې له يوې خوا داربکيانو په ليکو کې ټول هغه کسان اوافراد راټول شوي وو چې هرچا له خپل کور اوچارپيريال څخه دبدو اعمالو اوکثيفو اخلاقو له وجې شړلي او تجريد کړي وو ، له بل لوري داربکيانو ، کردار او چلند ، يو يو ، هيوادوالو دسرپه سترګو وليد ، ماخپله له ډيرو خلکو اوريدلي ، چې له اربکيانو څخه دغه شنه سترګي کفار هم شرف لري !



نوځکه الله تعالی داربکیانو ناولي ټولي هرځای نابود ، دړې وړې او سرکرده مشران یې دمجاهدینو دډول ډول حیرانونکو تکتیکي ګوزارونو اوعملیاتو په ترڅ کې ننبه وګرځیدل ، څوک له منځه ولاړل اوڅوک په دې دنیاکې له عبرتناکو عذابونو اورنځونو سره لاس اوګریوان شول !؟

په لوګر ولایت کې هم ، داربکیانو یو ډیرپلید او وحشي باند موجود وو ، چې مشري یې څوتنو معلوم الحاله ، مفسدینو ، لکه بابه قو ، سبزعلی ، غفران ، فرهاد اکبری ،غیاث اونورو .....ترسره کوله ، بابه قو دری کاله وړاندې ختم شو ، غفران داڅو میاشتې دمخه په یوه تکتیکي عمل کې له منځه ولاړ ، سبزعلی اوقومندان غیاث سره له نورو ملګرووړمه ورځ دلوګر ولایت په امنیه قومندانی دترسره شوي فدایي برید په نتیجه کې ووژل شول.

دوی هریو دخپلو ګمراهیو اوله اسلام او مسلمانو سره ددښمنی ، ځانګړې یادونه او نومونه لري ، په خاص ډول ( سبزعلي او قومندان غیاث)

سبزعلي ، چې دلوګر په سطحه داربکیانو قومندان وو ، په هغه باندې ، څو ځله مجاهدینو کارنده بریدونه اوعملیات ترسره کړل ، خو یابه بچ اویابه یې کلک ټپونه واخیستل ، الله تعالی هغه په خپل ظلم او کفرکې اخیري استدارج ته ورساوه ، اوبیایې په خپل ګرفت سره داسې نیست اونابود کړ ، چې قبربه یې هم څوک ونه بښي.

سبزعلي په دې سربیره چې دلویو لارو غل اوشوکمار وو ، دلوګر دمرکز اړوندپه ګڼو سیمو اوکلیوکې ، لکه کمال خیل ، ناصر ، کجی ، علی خان کلا ، پورک اوله کونجک تنګی نیولی ، ترکلنګار ه پورې لوی غزیدلی سرک ،دخپل وحشت په زور ، سره تبی ګرځولی اوراج یې پرې چلاوه ، له خلکو به یې په زوره ، پیسي ، میلمستیاوي غوښتلې ، خلکو ته به یې سختي سزا وي ورکولې ، مرګونه به یې کول ، تالاشیاني به یې کولې او په خاص ډول هغه خلک به هیڅکله نه پریښودل چې مجاهدینو ته به یې ډوډی اوڅنباک ورکړی وو ، هغوبه یې ترمرګ پورې وهل !

کله به چې عامو خلکو ورته وویل چې سبزعلی داته ولې داسې کړنې کوي اومسلمانان ځوروي ، نو هغه به ورته وویل زه خو کافر یم اوکافرخو له مسلمانانو سره همداسې کوي !!

سبزعلي ، دوه کاله وړاندې ، دیوه جومات دوه تنه حافظان په رمضان المبارک میاشت کې پرته له دې چې وسله ورسره وي اویادمجاهدینو له یوه ګروپ سره ښکاره تړاو ولري اول شهیدان اوبیا یې مړي دابو په کوهي کې وغورځول ، همدارنګه یې خپل خوریی ، یعني دخور ځوی ، په دې نوم چې ته طالب یې په رڼا ورځ په خپل لاس شهید کړ ،دغه راز دوه تنه مجاهدین یې له نیولو ورسته په ماینونه کینول اووایی لوزول ، یو دکاندار یې په دې جرم ! چې ولې په طالبانو سودا خرڅوي ، وویشت اوشهید یې کړ ، اویومشهور دلګی مشر ، مولوي بشیر یې شهید کړ اوداسې نور .....

دغه راز ، قومندان غیاث ، چې هغه هم له سبزعلي سره یوځای جهنم ته ولاړاو دهغه معاون وو ، خلکو ته به یې ویل چې ماته شوروی وایي ، هغه دومره پلید وو چې چیرته به یې بدفعلي وکړه ، نو ویډیو به یې هم ورنه ډکوله او خپلو افرادو ته به یې ورښووله،

له کوم لوري به چې پرې پیر اوډز وشو ،شوروي به هماغه لوری ، چې کلي اوکورونه به هم وو له یوې مخې تر هوانو لاندې نیول ، دغه بې حیا او یوبل قومندان یې دذبیح په نامه ، تیرکال یو حافظ چې ښه نوراني څیره یې وه اومبارکه ږیره یې په مخ وه په کلنګار سیمه کې ونیوه ، دښځو جامې یې ورواغوستلې ، اودولایت په چوکو اومارکیټونو وګرځاوه چې دغه طالب دی ، دښځو په جامه کې راغلی وو اوفدایي حمله یې کوله !

خلاصه : ددې هریوه اربکي ، بې شمیره داستانونه اوناولي کیسي دي ، چې په لیکلو یې سړی شرمیږي ، اوقلم ورنه حیا کوي ، دعا کوو چې الله تعالی دې هغه فدایی اتل ته چې دخپلې پاکې ککرې په نذرانه یې ، داسلام اوافغاني غیرت شمله، ددغو مفسدینو اومرتدینو په له منځه وړلو اوچته کړه او دلوګر داربکیانو په تابوت یې ورستی میخ ټک واه ، او هم یې دلوګر مسلمان اومتدین ولس ته دارام ساه وروبښله ، اعلی جنتونه اولوړ لوړ مقامونه ورکړي . امین



# داسلام تشريعي اساسات

اوومه

## نړۍ کې دفقهي مذاهبو بقاء او خپراوی

مفتي شاهد (حقاني)

لکه مخکې چې مو ورته نغوته وکړه، چې يوازې دمطلق اجتهاد او يا مقيد يا شخصي اجتهاد په دوره کې نه ،بلکې داسې به وو ايو چې دتقليد په وختونو کې فقهاوو او اهل الفقه علماوو دتل لپاره دمسئلې د استنباط لپاره شرعي دليل وړاندې کړي او پدې شرعي دليل يې دفقه جزئيه ثابته کړي، چې دا دی نن يې خلک دفقهي ضخيمو کتابونو په بڼو لولي او ګوري ،داسې کله ندې شوي چې ګوندې فقهاوو دې دفقهي مسئلې داثبات لپاره په روماني قانون او يا دمفتوحه هيوادونو خورو ورو قوانينو او يا نوروو وضعي قواعدو استدلال کړی وي ،بلکې دهرې جزئيې لپاره يې شرعي دلايل ارائه کړي دي ،نو که څوک داسې کوم وهم کوي ،چې دفقه کومه مسئله دروماني قانون سره مشابهت لري ، وجه به يې دا نوي، چې ثبوت يې لدې رومانيت نه شوی ،بلکې کله داسې هم شوي ،چې شرعي مسئله پداسې شکل استنباط شوې، چې روماني قانون ورسره مشابهت نبودلی ،يعنې روماني قانون له شرعي مسئلې سره برابر راغلی او دا کوم قباحت شرعي نلري.

داسلام په لومړيو کې د(امام اوزاعي رح ،سفيان ثوري رح او ابن جرير رح )غوندې دمطلق امامانو مذاهب دځينې وجهاتو په بناء له منځه لاړل او دا څلور مشهور مذاهب(دامام ابوحنيفه رح ،امام شافعي رح ،امام مالک رح او دامام احمد بن حنبل رح )په شان دمنل شويو امامانو مذاهبو انتشار ومونـد چې تر شرق او غربه يې دپيروانو لړۍ خپوره شوه ،ددې مندرس شويو(له منځه تلليو ) مذاهبو لاملونه ځينې تاريخ پوهان داښيي، چې داځکه دا اوسني څلور مذاهب پاتي او نور و رشد ونکړ،چې ددې مذاهبو دخپراوي شاته دوخت سلطان او حکومتي ملاتړ موجودو، چې لـه امله يې دې مذاهبو په نړيوال کچ شهرت ومونـد او نن يې پيروان په نړۍ کې په کثير تعداد سره شتون لري.

خو په(الموسوعة الفقهية الكويتية ) کې دا نظر په مطلق ډول ردشوی او ددې لپاره يې ځينې داسې بيلګې هم وړاندې کړي، چې دوخت حکومت خپل رسمي مذهب دنورو سيمو مذهب پدې وجه ندی شوی، چې دواکمنو فشار او اغيز پرې دا چاره شونې کړې وي، لکه چې ليکي: (.... إِذْ إِنَّ الدَّوْلَةَ الْعَبَّاسِيَّةَ - وَكَانَ نُفُوذُهَا مُمْتَدًّا عَلَى جَمِيعِ الأَقْطَارِ الإِسْلاَمِيَّةِ - كَانَ الْقَضَاءُ بِيَدِ الْفُقَهَاءِ الْحَنَفِيِّينَ ، وَمَعَ هَذَا فَإِنَّنَا نَجِدُ أَنَّ مَذْهَبَ الْحَنَفِيَّةِ لَمْ يَجِدْ لَهُ أَتْبَاعًا فِي الشَّمَالِ الإِفْرِيقِيِّ أَوْ فِي مِصْرَ إِلاَّ قِلَّةً قَلِيلَةً ، بَل إِنَّ الْكَثْرَةَ الْكَثِيرَةَ مِنْ بِلاَدِ فَارِسَ كَانَ مَذْهَبُ الشَّافِعِيَّةِ هُوَ الْغَالِبَ عَلَى أَهْلِهَا يَوْمَئِذٍ ، وَكَانَ مَذْهَبُ الْحَنَفِيَّةِ إِبَّانَ هَذِهِ الدَّوْلَةِ قَاصِرًا عَلَى الْعِرَاقِ وَبِلاَدِ مَا وَرَاءَ النَّهْرِ وَبَعْضِ بِلاَدِ فَارِسَ...... ) خلص ژباړه: دعباسي خلافت دواکمنۍ جال

چې په ټوله اسلامي خپورو، او حکومتي نظام يې هرمسلمان مانه ،ددې خلافت دمحاکمو اوقضاءچارې هم حنفي فقهاوو سنبالولې ،خو بيا هم دحنفي مذهب پيروان په شمالي افريقا او مصر کې کم کتل کيږي ،بلکې دفارس په سيمو کې دامهال (هغه وخت) دامام شافعي رح دمذهب غلبه ډيره تر سترګو کيږي او ددومره حاکميت سربيره دحنفي مذهب پيروان او اتباع د عباسي خلافت په پير کې دعراق ،دماوراءالنهر هيوادونه اوځينې فارسي ښارونو او سيمو کې شتون لري ،همداسې الموسوعي ليکونکي وايي: چې دعثماني خلافت واکمنې چې داسلامي نړۍ په اکثريت هيوادونو او مناطقو يې دحاکميت او حکومتولۍ راج چليده او ددې عثماني خلافت رسمي مذهب هم حنفي وه، او هم يې دخلافت اړوند په ټولو هيوادونوکې دمحاکمو او قضاء چارې نيغ په نيغه حنفي فقهاووسنبالولې ،نو دا کيدلای شوه، چې طوعا اوکرها دنړۍ مسلمانانو باندې حنفي فقه ومني، خو دا دی ګوروچې بيا هم شمالي افريقا په زياته اندازه دامام مالک رح دمذهب پيروان دي، او دتونس غونډې هيوادونوکې يې احناف هم په يوه اندازه شته ،په مصرکې مالکيان او شافعيان زيات دي او احناف هم ورسره شته، همداسې خليجي او عربي ځينې سيمې !

(دلته دالموسوعة الفقية الکويتية )ليکونکيو څخه (والله اعلم) زما په آند د انصاف تله يوې خواته درنده شوي ده ،ځکه چې په مصر ،شام ،افريقا او نورو هيوادونوکې دحنفي مذهب داسې لوی لوی علماء تير شوي، چې نن يې هم مونږ سره ليکنيز آثار او علمي کتابونه په لاس کې شته او خورا په لويه پيمانه داسې تحقيقاتي او څيړنيز کتابونه يې مونږ ته په ميراث کې پاتې دي، چې آن پخپله به تړې په عربي دنيا ،منځنې ختيځ هيوادونو اوشمالي افريقايي ملکونوکې هم استفاده کيږي ،نوکه دا سې لويې علمي ستې په شمالي افريقا ،منځنې ختيځ سيمو اودپخواني شام په هيوادونو او فارس کې لرو ،نو ولې بيادې اماکنوکې داحنافو له شتون څخه انکار کوو ،او داقليت داغ پرې لګوو ،دعلماوو له نظره همدا نن سبا غوڅ اکثريت په نړۍ کې دحنفي فقه له اتباعو او پيروانو څخه تشکيل دی، نو انصاف داو ،چې (عربي فقهي موسوعاتو ) کې ددې حقيقت څخه سترګې پټې شوی نه وای !

چې دبيلګې په ډول به دې هيوادونوکې دحنفي مذهب اړوند دنړۍ دمشاهيرو څوعلماوو نومونه راوړو ،چې له امله به يې دا په زباد ورسيږي، چې ربنتيا هم داحنافو مذهب کومه عجمي پديده نده (لکه ځينې خلک چې اوس هم داسې ګمان کوي ) بلکې داسلام دمبارک دين دښه شرحې سره له عربي سيمو څخه دخپل عصر له نوميالیو فقهاوو څخه راته په توارث کې پاتې دی ،او همدا چې ددې کره علماوو شتون به دحنفي مذهب جامعيت ،هم عربو او عجمو کې جوت کړي.

۱-د(ردالمحتارعلی الدرالمختار )دحاشيې (شاميه فتاوی )نړيوال نوماندفقيه ليکوال علامه محمد آمين مشهورپه (ابن عابدين شامی رح (۱۱۹۸-۱۲۸۳)چې دشام په پايتخت دمشق کې زيږيدلی او په مختلفو علوموا و فنونو کې د يوه ستر محقق او څيړندوی په حيث د(۲۰) ضخيمو او مشهورو کتابونو څښتن دی.

۲-علامه محمدبن علی بن محمد الحصکفی رح (۱۰۲۵هـ-۱۰۸۸هـ)چې دشام په دمشق کې زوکړی دی او د(الدرالمختار)مشهورې فتاوې په شمول يې په تفسير او نورو علوموکې د(۲)ضخيمو اوډيرو جلدونو تصنيفاتو ليکوال دی ،چې هلته په دمشق کې دمفتي په حيث يې هم دنده تر سره کړې ده.

۳-علامه محمدبن عبدالله بن احمدبن محمدبن ابراهيم بن محمد الخطيب التمرتاشی ،الغزي الحنفی )دا نوموړی دحنفي مذهب نامتو عالم دفلسطين دهاشم په غزه کې په (۳۰۳۹هـ-۱۵۳۳م )زيږيدلی او په همدې غزه هاشم کې په (۱۰۰۴هـ-۱۵۹۲م) کال کې وفات شوی دی ،دمشهورې شاميه فتاوی دمتن (تنويرالابصار)په شمول (۲۲)ستر ستر علمي تصنيفات لري او دعلم لويه پانګه يې مونږ ته په توارث پريښې ده ،حنفي عالم خو دفلسطين دغزې اوسيدونکی دی.

۴-د(حاشية الطحطاوي على المراقى )محشي ليكوال علامه احمد بن محمد بن اسمعيل الطحطاوی رح چې دحنفي مذهب نامتو عالم او ستر محدث او فقيه دی ،نوموړی دمصر د(اسيوط ) په(طهطا )نومې سيمې کې زيږيدلی دی او په (الدر المختار ) او( مراقی الفلاح ) يې نامتو شرحې کښلې دي.

۵-دهدايې شارح او صاحب د(فتح القدير ) کمال بن الهمام السيواسي الرومي ثم السکندري الحنفي )نوم يې محمد بن عبد الواحد بن عبد الحميد بن مسعود .. متوفي سنه( ۸۶۱ هـ) فقيه حنفي مشهور ، ډير تصنيفات لري چې مشهور يې همدا فتح القدير او(زاد الفقير ) دي.

٦-علامه قاسم بن قطلوبغا بن عبد الله الجمال المصرى الحنفی دی چې دمصر په قاهره کې په کال(۸۰۲ )کې پيدا شوی دی ډيری تصانيف لري او دعلامه ابن الهمام شاګرد اوحنفی المسلک دی.

۷-علامه شمس الدين محمد بن محمد بن محمد چې په ابن امير حاج مشهور دی دشام په حلب کې بالاخره وفات شوی ،دډيرو تصنيفاتو خاوند او حنفی عالم و.

۸-مشهور فقيه او حنفي عالم علامه زين الدين بن ابراهيم چې په ابن نجيم (متوفی سنه ۹۷۰هـ )شهرت لري او دکنزالدقايق شرح (البحر الرايق )غوندې (الاشباه والنظاير )هم په حنفي فقه کې ليکلې دي ، نوموړی مصری دی او هلته يې خورا ښه علمي شهرت خپل کړی وو. او داسې نور.......چې دټولو ليکل دې کوچنۍ ليکنه کې داسې دي ،لکه يو لوی سمندر چې په کوچنۍ ګوزه کې ځايوي !

سره ددې پدې فقهي موسوعة کې ليکي چې همدې عصر کې د(الازهر جامعې په تدريسي حلقاتو کې)په عام ډول دحنفي طالبانو موجوديت ډير دی، خو بيا يې په ښارونو کې شتون کم ښيي ،زما په آند ددې نه يوه همدا توجيه کيدای شي، چې دغه فوق الذکر سيمو کې به اکثريت دا نور مذاهب وو او احناف به هم ورسره وو ،خو غلبه به يې نه وه.

په هرصورت داخبره بالکل ترديد شوه، چې دمذاهبو په نفوذکې دوخت سلطان او خلافت اغيزو ،بلکې داحنافو ددومره حکمروايې سربيره ،چې عثماني خلافت کې يې مذهب رسمي او دقضاء دقوانينو ماخذ همدا مذهب و، خو بيا هم ډيرې سيمې لا هاغه وي ،چې وګړي يې احناف نه ،بلکې دنورو مذاهبو معتقدين وو.

مګريو حقيقت چې ورسره په ډاګه شو ، هغه دادی چې داحنافو ددومره سترې واکمنۍ سربيره ،چې په نړيواله سطحه يې کړې ده، بيا يې هم دنورو مذاهبو پيروان خپل مذهب ته په راړولو ندې مجبور کړي ،بلکې کتل کيږي چې په نړۍ کې نن هم دپيروانو له حيثه لوی مذهب حنفي دی ،چې په پراخه پيمانه مسلمانان پکې راغونډ شوي او بس !

حق داده چې ووايو چې ديوه مذهب اوږده بقاء او انتشار، لومړی په اعتماد سره او بيا په صاحب مذهب باندې دخلکو دتوثيق او اطمينان په صورت کې منځ ته راځي ،همداسې دصاحب مذهب په تکړه او پياوړيو شاګردانو او ملګرو او هم دمذهب دنشر په هکله ددوئ د دأب او احسن اسلوب سره اړه لري ،پدې توګه دمسايلو په تحقيق او همداسې ددې مسايلو په فهم کې داسانۍ او تيسرلارې چارې خپلولو پورې تعلق لري.

نو کله چې دمذهب امام باندې داستنباط او استخراج سربيره په ورع او ديانت کې پوره باور ومو ندل شي ،ملګري يې غښتلي وي ،تحقيقات يې کشش آميزه وي او مسايل په احسنه وجه عرضه کوي او په ساده او عام الفهمه لهجه وي ،نو له امله به يې دا مذهب متباقي او تلپاتي او ډير پيروان به ولري !



# دامریکا دزوال وړاندوینه!

فـــرهـــاد "اتل"

تر ۲۰۲۰ ز کال به امریکا په اوسني شکل پاتې نه وي!!!دا وړند وینه دغرب ترټولو ممتاز سیاسي څېړونکي "جان ګالټنګ" پخپل نوي کتاب The Fall Of us EMPIRE کې کړي، "جان ګالټنګ" د نړۍ اوپه خاصه توګه غرب کې دیو مفکر، هوښیارلیکوال او دنړیوال اهمیت درلودونکو کتابونو دمصنف په توګه شهرت لري!

د کوم څېز له امله چې هغه نړیوال شهرت مندلی، دنوموړي هغه څو وړاندوینې دي، چې رښتیا ثابتې شوې، په اتیایمه لسېزه کې دشوروي اتحادپه اړه یې وړاندوینه کړې وه،چې په نوییمه لسېزه کې به شوروي وویشل شي او څو جلا ملکونه به تري وزیږي، نړۍ ولیدل چې شوروي اتحاد رښتیا ړنګ او دهغه نه ګڼ هېوادونه ازاد شول، هغه بله وړاندوینه دا کړېوه ، چې دیویشتمې پیړۍ په لومړیو لسیزو کې به دعربو آمرانه حکومتونه وپرځول شي، نن سبا دعربي هېوادونو حالت زمونږ په وړاندې دی، "جان ګالټنګ" د"برلن دیوال"په باب هم وړاندوینه کې ویلي و،چې شرقي او غربي برلن به بیرته سره یو شي او هم به د برلن دیوال ړنګ شي، وروسته شرقي او غربي برلن دواړه یوشول! په دې وروستیو کې "جان ګالټنګ"یوه بله وړاندوینه کړې، هغه لیکي: د ۲۰۲۰ کال پورې به امریکا په اوسني شکل پاتې نشي!! دنړۍ هوښیار خلک دنوموړي دا وړاندوینه له پامه نه غورځوي،ورته دحیرانتیا په نظر ګوري! او دنړیوالو چارو کارپوهان او څېړونکي، دجان ګالټنګ ددې نظریې دمحرکاتو اودلایلو په لټه بوخت دي،هغوئ دې لړ کې دامریکا ظالمانه جنګي پالیسیو اوخپله دامریکا دننه دسپین پوستو اوتورپوستو ټکر راتلو ته، دقوي اوجدي محرکاتو په بڼه ګوري، ورته په پام دجان ګالټنګ نظریه له پامه نه غورځوي.او ورته په غور ځیر دي.

امریکا چې د ډېرې مودې نه، دټولې نړۍ فتحه کولو خوب ویني، اوس د دې لپاره په عملي جنګ هم لګیاده،وړاندې یې هم دنړۍ په ګڼو هېوادولکه جاپان، ویت نام، روسیه، لیبیا، فلسطین، اردن، چین، صومالیه، سوریه، شمالي کوریا، مصر، سوډان انډونیزیا عراق او افغانستان شول، چې یا مخامخ د امریکادظالمانه یرغل نښه ګرځیدلي اویا دسیاسي مداخلو دلاړې دامریکایانو دستمونو ښکار شوې.په "خلیج ټایمز" کې د چاپ راپور سره سم دامریکا د پراختیا خوښونې عزایمو له امله دنړۍ دنفوسو څلور برخې دامریکایانو د پالیسیو نه کرکه او شدید نفرت لري،دامریکا دننه دخلکو لویه سلنه دامریکا ظالمانه کړو وړو ته په ښه نظر نه ګوري.

د امریکا دننه په دا وروستیو کې دبیلتون غوښتنې خوځښتونه اوپاڅونونه هم دامریکا دپالیسیو په وړاندې غبر ګون دی، دجان ګالټنګ دوړاندینې سره سم داپاڅونونه به تر ۲۰۲۰ز کال پورې دامریکا دجغرافیې په بدلون کې اهم رول ولوبوي،په ۲۰۱۲ کې د اوباما په بیا ولسمشر کېدو د"لوزیانا" ایالت ۱۳زره خلکو دامریکا نه دبیلتون لپاره محکمې ته دبیلتون غوښتنې عریضه وړاندې کړې وه، هغوئ له امریکا نه د جلا هېواد په توګه دخپل ایالت غوښتنه لري، د"لوزیانا" خلکود غوښتنې زیات وخت نه وشوی، چې په څو نورو ایالتونو کې هم له امریکا څخه دازادۍ ترلاسه کولو منظم غږونه پورته شول، محاکمو ته یې په اړه عرایض او وړاندیز لیکونه وسپارل،تردې مهاله د سپینې

ماڼۍ نه، دازادۍ غوښتونکو ایالتونو شمېر ۲۷ ایالتو ته رسیدلی، دامریکایي اساسي قانون له مخې که هر ایالت له امریکا نه ازادۍ وغواړي، دامریکا یې قانون له مخې که دیوې میاشتې دننه دکوم ایالت ۲۵زره کسان دازادۍ غوښتو لپاره لاسلیکونه وکړي، دامریکا ولسمشر مکلف دی چې دهغوئ په غوښتنه غور وکړي!! ددې شرط پوره کولو لپاره هڅې اوکوښښونه روان دي، په کومو ایالتونو کې چې دازادۍ غوښتو تحریکونه راپورته شوي، هلته دلاسلیکونو کمپاین بشپړیدو ته نیږدې دی، په لوی شمېر کې خلک دامریکا نه دخپلو ایالتونو دازادولو لپاره دیوبل سره ژمنې کوي، څوپه راتلونکي کومه میاشت کې دلاسلیک پروسه پیل کړي، دا کار ددې خبرې ثبوت دی، چې دامریکا زیات شمېر خلک دامریکا حکومت له پالیسیانو سره مخالفت لري، ازادۍ غوښتونکي نیوکه لري چې دامریکا حکومت ددې پرځای چې دامریکا دخلکو پیسې بیرته دامریکایانو په ژوند ولګوي، هغه یې دنړۍ نیولو او اشغالولو لپاره لګوي، ، بل داده چې دامریکا ولس یوبا سواده ولس دی، هغوئ درسنیو اونورو باوري زریعو د لارې خبردي، اوپوهیږي چې امریکا دنړۍ ترټولو ډېر پوروړی هېواد دی، وربانديې له یونیم سل کرب نه ډېرې پیسې پوردي، چې له امله یې دامریکا اقتصاد د زیانونو اوخسارو ښکار دی،هم دا راز دامریکا ډېر پام اوس دتعلیم، روغتیا او خلکوته د کارونو پیدا کولو پرځای جنګونو ته اوښتی دی، او بیکارۍ تربل هروخت ډېره شوې، خلک وایي دوئ غواړي یوازې دخپلو ایالتونو دننه دخپلو ستونزوپه کمولو فکر وکړي، نه په ټوله نړۍ دحکومت کولو پیټی ددوئ په اوږو باروي،بل امریکایان پوهیږي چې ددوئ لپاره دامریکاپالیسیو ګرده نړۍ سور تنور ګرځولي، هیڅ امریکایي تبع په نړۍ کې خوندي ندی، خلک نړۍ کې له هغوئ نه نفرت لري، ازادۍ غوښتونکي ددې په ځای غوره بولي چې هغوئ خپل ایالتونه د امریکا نه ازاد کړي، اودنړیوالو سره خپله عادي راشه درشه پیل کړي،څو په ډاډمنه توګه نړۍ کې دهرچا سره راکړه ورکړه ولري.




هم په امریکا کې تور پوستو اوسپین پوستو زاړه رقابتونه یوځل بیرته تازه شوي، ترمنځ یې اوبه خړې دي، د دواړو لوریو دغوښتنو او په یوبل نیوکو کې دزمکې او اسمان واټن دی، داوباما په ګوند دمخالف ریپبلکن ګوند نوی برې هم ددې خبرې ثبوت دی چې په امریکا کې دغه توپیر او امتیاز مخ پر زیاتیدو دی، په نیږدې وخت کې شاید په لوی کورني جنګ منتج شي، دېته په پام "جان کالټنګ" لیکلي: امریکا یوې داسې بندې کوڅې ته ننوتي، چې هلته دبیرته په شاه تګ لپاره لارنلري.

دې وخت کې، یولورته دامریکا دننه دازادۍ غوښتو څپه مخ پر شدت ده، په ازادۍ غوښتونکو ایالتونو کې قوي خوځښت ترسترګو کیږي، په لوی ښهر خلک ښکاره د سپینې ماڼۍ نه زادۍ غواړي، دهغوئ پرضد ځوابي غبرګونونه هم پیل شوي، څوک چې ازادۍ غواړي، دهغوئ دتابعیت منسوخولو ګواښونه کېږي، په دې سره دامریکایانو پخپلو منځو کې لریوالی اوبیلتون راغلی، دامریکادننه په لویه پیمانه دوسلو اخستل اوپلورل روان دي، درسنیو له مخې یوازې په تېرو درې میاشتو کېد امریکا خلکو لخوا د درې ملیونه ډالرو په بیه وسلې اخستل شوې، هم دا وسلې به په راتلونکي کې دامریکا دزوال قوي توپان روانوي اودا خبره باوري کوي، چې دامریکا دزوال شیبې نیږدې شوې، یوازې د۲۰۲۰ کال تر راتلو انتظار وکړئ!

# غداره جرګه....

اسلم امید

دلیندۍ په ۳مه، په پلازمېنه کابل کې، دولسي جرګې ترنامه لاندې محکومې امریکایي پاله جرګې، دیوساعت ځنډتیرولو اومره وخت کې دافغانستان دخرڅلاو، تور سند په تصویبولو، دمیړني او ازاد افغان ولس سره دتاریخ دیو نه بښونکي خیانت اوجنایت جسارت وکړ!

دخبري رسنیو په راپور: دامریکایي ښکېلاک دخوښې او ارادې سره موافق دګوډاګي رژیم چارواکیو دامنیتي موافقې په جعلي عنوان دافغانستان دخرڅلاو هغه کرکجن سند (کوم چې دامریکا لاسپوڅي ولسمشر اشرف غني احمدزي دخپلې مردودې دورې دلوړې کولو په دوهمه ورځ له امریکا سره لاسلیک کړ) دوروستي اوحتمي ملاتړ په موخه یې په جعلي اونمایشي ډول دولسي جرګې ځانګړې ناسته رابلل شوې وه، چې پکې د ۱۷۵ غړوله منځه درې غړو خپلې رایې سپینې و کارولې او پنځو غړو دتړون نامشروع ګڼلو سربېره، داګام دافغانستان له خاورې او ولس سره دجنایت او ظلم په توګه یاد کړ او پرضد یې نارې ووهلې، پاتې نورو ټولو غړو دافغان ولس داستازو په نوم په یوغږ، له کومې واقعبینانه ارزونې اوڅېړنې پرته تري دخپل ملاتړ ښکاره کولو په موخه شنه کارتونه پورته کړل!!

دباوري سرچینو ویناده: ددې ناستې نه دمخه، کابل کې دامریکا سفارت، چې تري درژیم ټولې چارې کنټرولیږي، دجرګې وکیلانو سره ددې لپاره دومدارې لیدنې، کتنې کولې، وربا ندې زیات فشاراو ټینګار درلود، چې دموافقې نه دملاتړ په ځانګړې ناسته کې هغوئ له کومې چون چرا پرته دملاتړ لپاره لاسونه پورته کړي، څو نړیوالو ته ښکاره شي، چې دپارلمان دغوڅ اکثریت لخوا دامنیتي موافقې متن توثیق اوتاییدشو،! سرچینه زیاتوي، دې لړ کې دامریکا دسفارت لخوا دجرګې دغړولپاره کې دڅوورځو راهیسي ځانګړې غوړې میلمستیاوې برابرې شوي وي، هم ورسره دسفارت دننه مجلسونه جوړیدل.

ښکاره ده، د پردیو لخوا په جعل کاریو او د ټګیو برګیو پر مټ غوره شوي استازي، دهمداسي ورځو اوموخو لپاره غوره کېږي، دافغانستان دولسي جرګې په نوم جوړ پارلمان یومخ دسي ای اې دایجنټانو نه ترکیب شوی، هلته خوله سره بل څوک لاړندي، نو دهغوئ نه هم داتمه اوتوقع کېدای شوه، خو یوه خبره روښانه ده، چې دغسي پردیو څېرو او اشخاصو پریکړې امریکا ته نجات نشي ورکولی، هر سړی خبردی چې په دغه جرګه کې ناست استازي دامریکا معاش خواره دي، هغوئ ته امریکا معاش دهمدي پخاطر ورکوي، چې هرځای دافغانستان او امریکا دګټو ټکر راځي، هلته به دوئ په افغانستان امریکاته ته ترجیح ورکوي!!

البته ددغسي اشخاصو لخوا دافغانستان دسرنوشت په باب دامریکا سره شویو توافقاتو او تعا هداتو ته افغان ولس ددوه ولسونو ترمنځ دشویو تعاهدونو په بڼه نه ګوري؟! دا دغالب ځواکمن او دمغلوب محکوم، زورور او کمزوري ترمنځ توافق دی، دبادار اوغلام ترمنځ سوداده!! چې له حقوقي، قانوني او اخلاقي پلوه کوم اعتبار نلري

افغانستان امریکا یانو دېر مختللې ټیکنالوجۍ په زور اشغال کړی، افغانان دخپلې خوښې او ارادې نه محروم دي، امریکایان له دې پرته دخپل ظالمانه اشغال ترسیوري لاندې نورې داسي لسګونه لوظنامې یاتړونونه لاسلیکولی شي، داورته کوم مشکل کار ندی! هم داسي بې شمېره جعلي او تحمیلي موافقې تصویب او وتپې. دې لپاره یې پخپل چوپړ کې جلا اشخاص روزلي، هغوئ دافغان ولس دجعلي استازو په حیث مخې ته راولي، وربانديې دغه ډول نامشروع غوښتنو او ارادو ته دعمل بڼه ور کوي.

خو هر چې دافغان ولس د اکثریت اراده او عزم دی، هغه ته په پام دغسي نمایشي او جعلي تړونونه او یا موافقې کوم اعتبار نلري، د افغانانو بشپړ اکثریت دغه تړون د افغانستان د ارضي تمامیت دخرڅلاو قرارداد بولي، هر اصیل افغان دا په کلکه غندي او د عاملینو لپاره دمحاکمي غوښتنه کوي، خو بشپړ لاګګر باید په دې پوی شي، چې دوئ د دغسي جعل کاریو او دوکو په مټ افغان ولس دازادۍ له مسیره نشي ګرځولی، دغسي استعماري او استکباري ارادو ته دتړونو او معاهدو نوم ورکول او بیا دزور او چل ول له لارې په افغانانو تپل به پخپله ددوئ لپاره هم ډېر بد عواقب ولري، حتمي ده په دې سره به نړیوال امنیت ته هم صدمه ورسي، او هم به ددوئ مغرورې ککرۍ په وینو کې و رغړوي.

هو! له کله نه چې دا مردود تړون لاسلیک شوی، له هغه مهال راهیسي امریکایانو شپیني عملیات ډېر کړیدي، هره شپه دبي وزلو افغانانو په کورونو داړې غورځوي، په ټول هېواد کې دډار او وحشت روحیه خوره ده، دشپې لخوا دعملیاتو بیا پیل دجنګ دوام په معنی دی، لیکن که هرڅومره نور ظلم او وحشت هم زیات کړي بیا به هم بریا لیتوب ترلاسه نکړي.

او حتمي ده چې داستعمار هیلو او موخوته وفادار جعلي استازي، دافغان ملت ارادې او ازادۍ غداران به خامخا دخپل دغه مجرمانه کردار تراخه وڅکي، هغوئ به ځانونه دملت له محاکمې او محاسبې ونشي ژغورلی، سرله اوس نه مجاهدین وروڼه دهغوئ په مراقبت او څار پسي ځیر شي، هرځای چې په لاس ورشي بایدي صرفه پرې ونکړي، څو په راتلونکي کې دنورو لپاره سبق شي.

### په مسجدکې دځای نه شتون له امله په دکانوکې لمونځ کول

که چیرې په مسجد کې ځای نه وي نوله مسجدڅخه دباندې خلکو اقتداء هغه مهال صحیح ده کله چې دمسجداو لمونځ کونکو په مابین کې لاره بنده کړل شي او په صفونو کې اتصال راشي، یوبل شرط داهم دی چې همدې مقتدیانوته به دامام دحالت علم وي یعني دامام ولاړه ناسته سجده او رکوع به ورته معلومیږي ـ که چیرې په صفونو کې اتصال نه وي بلکه په مابین کې لاره خالي وي او یا هم دامام دحالت په اړه نه پوهیږي نو په دې صورت کې یې په نوموړي امام پسي اقتداء صحیح نه ده.

قال الحصفکي رح : (ویمنع من الاقتداء طریق تجري فیه عجلة)آلة یجرهاالثور (اونهرتجري فیه السفن ) ولوزورقا ولوفی المسجد (اوخلاء) الی فضاء (فی الصحراء) اوفی مسجد کبیر جداکمسجدالقدس (یسع صفین) فاکثر الااذااتصلت الصفوف فیصح مطلقاکان قام فی الطریق ثلاثة وکذااثنان عندالثاني لاواحدا اتفاقالانه لکراهة صلاته صاروجوده کعدمه فی حق من خلفه (والحائل لایمنع )الاقتداء (ان لم یشتبه حال امامه بسماع اورؤیة ) ولومن باب مشبک یمنع الوصول في الاصح (ولم یختلف المکان )حقیقة کمسجدوبیت فی الاصح. (الدرالمختارعلی صدرردالمحتار ج ۱ /ص ۵۸۴ باب الامامة)

ومنهاطریق عام یمرفیه العجلة والاوقار هکذافی شرح الطحاوی. اذاکان بین الامام وبین المقتدي طریق انکان ضیقالایمرفیه العجلة والاوقارلایمنع وان کان واسعایمرفیه العجلة والاوقاریمنع کذافی فتاوی قاضی خان والخلاصة هذااذالم تکن الصفوف متصلة علی الطریق امااذااتصلت الصفوف لایمنع الاقتداء ولوکان علی الطریق واحدلایثبت به الاتصال وبالثلاث یثبت بالاتفاق. الفتاوی الهندیة ج ۱ /ص ۸۷ باب الامامت ،الفصل الرابع فی بیان مایمنع صحة الاقتداء .الخ

# د یمن د تجزیې یقیني خطر

حسن مومند

کابو ۴ کاله دمخه په عربي نړۍ کې د دولتونو پرضد د پیل شویو پاڅونونو لړۍ چې د تیونس نه پیل شوې وه اوس تر یمن راورسېده ؛محتر مولوستوالو به له رسنیو اورېدلې وي د دولت پرضد د پاڅون په لړ کې د حوثي قبیلې سره تړاو لرونکو زیدي شیعه ګانو د هېواد د دوه نوروسترو ښارونو تر څنګ پلازمېنه صنعا هم قبضه کړه .

یمن چې په شمالي او جنوبي دوه برخو ویشل شوی دی په جنوبي برخې کې یې د شیعه ګانو اکثریت دی؛ د همدې جنوبي یمن د حوثي قبیلې زیدي شیعه ګانو کابو دړې میاشتې وړاندې یعنې د اګست میاشتې په منځ کې د دولت پرضد پاڅون وکړ ،د دې پاڅون مشري د حوثي قبیلې یو ځوان مشر عبدالملک الحوثي کوي او پیل یې د عمران ولسوالۍ څخه شوی؛ د دولت پرضد د لاریون لپاره تر ټولو رومبۍ غونډه چې په همدې ولسوالۍ کې جوړه شوې وه ورته په وینا کې عبدالملک الحوثي وویل: د دولت تبدیلي او د قیمتي او بې کارۍ له منځه وړل زموږ دوه سترې غوښتنې دي .

په پیل کې دولت د دوئ په غوښتنو غوږ نه و ګرولی ځکه چې ګومان نه کېدلو چې دا لاریونونه به د هېواد نورو برخو ته سرایت وکړي او تر پلازمینې به راورسېږي خو چې کله د هېواد د مختلفو سیمو او سېدونکي د دې لاریونو سره مل او په لسګونو زره وګړي د هېواد پلازمېنې ته راتول،د پلازمېنې سترې لارې یې تر خپل کنټرول لاندې راوستې او د کورنیو چارو د وزارت په شمول یې یو شمېر دولتي تاسیسات محاصره کړل نو بیا ولسمشر عبدربه منصورالهادي پوه شو چې حالات مخ په خرابېدو دي نو د حوثیانو دواړه غوښتنې یې ومنلې؛هم یې د اقتصادي پرمختګ او بې کارۍ د له منځه وړلو لپاره ځنې ګامونه پورته کړل او هم یې اعلان وکړ چې کابینه به رنګه او نوې کابینه به جوړه کړي چې لومړی وزیر به یې محمد مبارک وي او پېدې ادارې کې به د ټولو سیمو او قبیلو نمایندګي وي.

خو د دولت دا اعلان ځکه بې ګټې ثابت شو چې هم محمد مبارک د صدراعظمۍ قبلولو نه انکار وکړ او هم حوثیانو هغه مسترد کړ .

حوثیانو چې د دولت کمزوری ولید نو غوښتنې یې لاپسې زیاتې کړې؛ په صنعا کې خپلو پلویانو ته د وینا پر مهال عبدالملک الحوثي وویل چې اوس زموږ غوښتنه یواځې د کابینې بدلون نه بلکې موږ اوس د جنوبي یمن خپلواکي غواړو.

ولسمشر عبدربه او نورو سیاسي مشرانو چې کله د دوئ دا غوښتنه د قانون خلاف وګڼله او په سختو ټکویې رد کړه نو حوثي قبیله چې د حزب لانصار په نوم وسله واله ډله لري او د تېرو ۲۵ کلونو راهیسې فعاله ده د همدې ډلې په زور یې د صدارت ماڼۍ او د لومړي وزیر پر دفتر هجوم وروړ چې د دولت د امنیتي ځواکونو په دفاعي ډزو کې نېږدې ۳۰ تنان ووژل شول او ګڼ شمېر ټپیان شول .

د دولت دې دفاعي عملیاتو په نتیجه کې یې لاریون کونکو ته د مرګ ژوبلې اورېدلو داګټه وکړه چې د حوثي قبیلې لاریون کونکي چې تر پلازمېنې رارسېدلې او بیا یې د کورنیو چارو وزارت محاصره کړی و، خبرو اترو ته یې غاړه نه ایښوده او مخ په وړاندې تلل ځکه چې دولت د دوئ پرضد د وسلې نه کارولو دریځ خپل کړی و خو کله یې چې د دولتي ځواکونو له لورې مرګ ژوبله ولیدله نو خبرو اترو ته یې غاړه کېښوده او مذاکرات پیل شول چې د ملګرو ملتونو مندوب جمال بن عمرو نومې تن ته یې د منځګړیتوب چارې وروسپارل شوې؛مذاکرات څو ځلې د خنډونو نه سره مخامخ شول خو بالآخره دا رتیا وړ تو کیو د نرخونو په راټیټولو او د اداري په رنګولو او د قومي دولت جوړولو دواړه اړخونه سلا او دا هیلې راپیدا شوې چې شاید د دولت ضد لاریونونه تم او په یمن کې دسترو ګډوډیو او کورني جنګ درامنځته کېدو مخه ونیول شي خو دا چې دزړه نه دواړه اړخونه مذاکراتو او د مذاکراتو پرېکړو ته ژمن نه وو نو د ناکامۍ نښې یې ډېرې ژر راڅرګندې شوې.

اصل خبره دا ده چې یو اړخ هم دملي ګډو دساتنې په موخه مذاکراتو ته نه وو تیار شوی بلکې هر لوري دمقابل لوري دکمزوري کېدلو او دمذاکراتو لـه لارې خپلو موخو ته درسېدلو په تمه مذاکراتو ته غاړه اېښې وه نو ځکه یو اړخ هم دمذاکراتو نه پس په اخلاص اقدام ونکړ .

دا خو څرګنده خبره ده چې ترڅو دحوثي قبیلې خپل فرد یا یې دخوښې کوم تن دلومړي وزیر په صفت نه وي منل شوی ترهغې حوثیان نه راضي کېږي نو ولسمشر که رښتیا هم دحوثي قبیلې بغاوت ختمول او دملي ادارې جوړول غوښتای نو باید ژر یې دا اقدام کړی وای ، خو ولسمشر دداسې تن نوم صدراعظمی ته وړاندې کړ چې ډېر ژر دحوثیانو له لوري مسترد شو اوترڅنګ یې پخپله بن مبارک هم ددې منصب قبلولو نـه انکار کړی او ولسمشر تـه یې خپل معذرت وړاندې کړی.

ولسمشر چې دلومړي وزیر په تقرر کې دحوثیانو غوښتنې په پام کې ونه نیولې همدا رنګه یې دقومي ادارې په جوړېدو کې هم دډېر څنډ نه کار واخست او ترننه یې پدې اړه کوم اقدام ونکړ.

ددولت ترڅنګ ددولت مخالفین هم په خپلو خبرو ندي ولاړ ؛ سره له دې چې دمذاکراتو خبره رامنځته شوی وه خو بیا یې هم وسلې په ځمکه نه کېښودې او نه یې هم ددولتي تاسیساتو دمحاصرو او نیولو لړۍ ودروله.

دسولې دتړون نه دوه ورځې پس په پلازمېنې صنعا کې دحوثیانو په لاریون کې یوپه بل پسې دوه چاودنې وشوې چې پکې له ۷۰ زیات تنان مړه اولـه ۲ سوه نه زیات ټپیان شول ؛ ددې دواړو حملو مسئولیت چې القاعده په غاړه واخستلو نو سره له دې چې حوثیانو دتړون ماتول اعلان نکړل خو په عمل کې یې ټول هغه څه وکړل چې له امله یې تړون بې معنی او په هیواد کې دشام په څېر دستر داخلي جنګ خطر مخ په ډېرېدو شو.

په نویو پر مختګونو کې حوثي باغیانو الحدیده نومې ساحلي ښار هم قبضه کړ ؛پدې ښار کې دسمندري ځواکونو یو اډه،یو هوائي ډګر او دالحدیده بندر هم دوئ ترخپلې قبضې لاندې راوست.

دبحراحمر په څنډه پروت الحدیده ښار ددې ترڅنګ چې دیمن په سترو ښارونو کې شمېرل کېږي ډېر ستر ستراتیجیک اهمیت هم لري؛دنفوسو شمېر یې ۲ میلیونو ته رسېږي ؛ دلته دهوائي ډګر او دسمندري ځواکونو ستره اډه شتون لري ؛ دسعودي عربستان سرحد ته ډېر څېرمه پروت دی او بندر یې دعدن دبندر نه پس ترټولو ستر بندر دی.

حوثي باغیانو دا ښار په ډېرې اسانۍ ونیولو او پرضد یې دفوځ یا دښار د اوسېدونکو له لوري هیڅ مقاومت ونه شو ځکه چې ولسمشر عبدربه امر کړی و چې دحوثیانو پرضد دې ولس او فوځ دوسلوال مقاومت نه ډډه وکړي.

همدې دمقاومت نه شتون حوثیان ډېر ژړور کړېدي نو ځکه یې دالحدیده دنیولو نه پس اعلان وکړ چې ډېر ژر به مخ پـه وړانـدې ولاړ شي؛ددې اعـلان نـه پس یې دسعودې عربستان دسرحد پرلور پرمختګ پیل او دسعودي عربستان پولې ته څېرمه دحرض نومې سرحدي عسکري مرکز یې پـه ډېرې اسانۍ لـه فوځي ځواکونو نه ونیولو.

دخلیجي هیوادونو او منځنې ختیځ دچارو پوهان وایې چې الحدیده ته دحوثیانو دتوجو او دبحراحمر دبندرونو دنیولو دهڅو نه داسې ښکاري چې دسنجول شوي پلان او دوئ ته دورکړل شوي پروګرام له مخې حوثي باغیان غواړي چې دبین المللي تجارت خو راډېره مهمـه سمندري لار باب المندب هم ترخپلې قبضې لاندې راولي.

په باب المندب دحوثیانو دقبضې راتلل ایران ته ډېره ستره ګټه رسوي نو ځکه زیاتره شنونکي وایې چې دحوثیانو وروستنې اقدامات ددوئ په خپلې ارادې نه بلکې دایران په لمسون او دایران له لوري دورکړل شوي پروګرام له مخې شوي.

دیمن دولت خو دڅو کلونو راهیسې وائې چې ایران حوثي قبیله ددولت پرضد پاڅون ته هڅوي او غواړي چې دیمن اداره ړنګه او پرځای یې حوثیان واک ته ورسېږي ترڅو پدې هیواد کې دخپلې خوښې حکومت له لارې په سیمې کې خپل نفوذ زیات او بې شمېره سترې مادي ګټې ترلاسه کړي.

دیمن دولت دا هم ویلي دي چې دولسمشر له لوري صدراعظمی ته نومول شوی بن مبارک حوثیانو نه بلکې ایران مسترد کړ .

ایران خو اوس چپه خوله دی ، نه یې دیمن ددولت له لوري پردوئ لګول شوي تورونه رد کړي اونه یې منلي دي خو په تېرو وختونو کې تهران ښه په ښکاره دیمن دتجزیې او په جنوبي یمن کې دحوثیانو دخپلواک دولت جوړېدلو حمایت کړیدی.

دا څرګنده ده چې داوسنو ګډوډیو لامل دحوثي باغیانو پاڅون دی ؛ ددې پاڅونونو ترشا به بهرني لاسونه هم وي خو دصنعا دادارې له لورې دولس سره بې انصافي او دهېواد پرتهولو وسایلو دیوې قبیلې قبضه داوسنو بغاوتونو او ګډوډیو اصل لامل دی.

پخواني ولسمشرعلي عبدالله صالح چې ۳۳ کاله ددې هېواد پرواک قابض و په ملکي او فوځي ټولو سترو پوستونو یې دخپلې قبیلې افراد مسلط کړي وو چې له امله یې په نوروټولو قبیلو کې ډېرې سترې ناهیلۍ خپرې شوې وې ؛ ددې ظلم تر څنګ بل ظلم داوچې دولت به دخپلوټولو سیاسي مخالفینو سره دمفاهمت لار تل ردوله او دزور له لارې دهرې مسئلې دحل پالیسي یې خپله کړې وه خو دالاصلاح په نوم داخوان المسلمین ډلې او حوثیانو سره یې بې انصافي ترټولو زیاته وه؛ اخوان المسلمین خو ددولت پرضد کله وسلې ته ندی لاس کړی خو حوثیان چې دیو شمېر بهرنو هیوادونو لاسونه او مرستې ورسره ملې وې نو په ۱۵ کلونو کې یې دیمني دولت پرضد ۶ ځلې جنګونه کړیدي ؛ یوځل یې په پوله پرتود سعودي عربستان دفوځونو سره هم جنګ کړیدی نو ځکه دیمن اوسنو ګډوډیو او بیا دحوثي قبیلې تېز پرمختګ دسعودي عربستان دولت دډېر جور خفګان سره مخامخ کړیدی او ښه په روښانه ټکویې ویلي دي چې ،، که یمن امنیت ته ستر ګواښ متوجې شو دساتنې لپاره به هر هغه اقدام وکړو چې ورته اړتیا وي.

دا دوهم ځای دی چې سعودي عربستان او ایران دیو بل سره په سیاسي ډګر کې په مقابل کې واقع شویدي؛ له دې وړاندې په شام کې دبشارالاسد درژیم پرضد سعودي عربستان دلویدیځ دنظامي اقدام ملاتړ کاوه خو ایران یې سخت مخالف و؛ کله چې دبشارالاسد درژیم پرضد دنظامي اقدام خبره شاته او څه موده وروسته دامریکا په مشرۍ کې دداعش پرضد دهوا له لارې دنظامي عملیاتو خبره رامخې ته شوه نو دایران او سعودي عربستان مخالفت پای ته ورسېد او دواړو دداعش پرضد نظامي عملیات تائید کړل.

خو اوس په یمن کې په سیاسي ډګر کې ددواړو مقابله سخته ښکاري او په لنډ وخت کې په یوې نکتې ددواړو متفق کېدل ډېر ګران برېښي.

سعودي عربستان دصنعا داوسنۍ ادارې بقا غواړي او واک ته دهغه حوثیانو درسېدو سخت مخالف دی دکومو سره یې چې فوځ یوځل په مخامخ جنګ اخته شوی.

دا چې دعلي عبدالله صالح رژیم یو بې نظمه رژیم و،امنیتي ادارې یې کمزورې وې،زیاتره وختونه به پکې دقبائلو ترمنځ جنګونه وو او تریو حده پکې فرقه یزې شخړې هم رواني وې نو یمن دالقاعده دپناه او ودې لپاره ډېر په زړه پورې هېواد ګرځېدلی و،دسعودي عربستان او یمن ترمنځ غرنۍ سیمې دالقاعده لپاره ډېر خوندي پناه ځای دی او همدلته ګڼ روزنیز مرکزونه لري،دامریکا بې پیلوټه الوتکو دلته ګڼ بریدونه هم کړیدي چې پکې مجاهدینو ته ځاني تلفات هم وښتي دي خو چې مجاهدینو دې سیمې ته دجاسوسانو دراتلو مخه نیولې ده نو دلته دامریکا دبې پیلوټه الوتکو په بریدونو کې قیادت ته لوی زیان ندی رسېدلی؛ امریکا دلته یوازې دانورالعولقي په وژلو توانېدلې ده.

نو دحوثي قبیلې دپرمختګ مخه که نیسي نو همدا دیمن ځواکمنه القاعده به یې نیسي.

القاعده چې اوس دحوثیانو په مقابل کې دجنګ ډګر ته راوتې ده،په باره کې یې تمه هم دا ده چې دحوثیانو دپرمختګ مخه به ونیسي خو دا کار به دیمن د ولس لپاره له ځانه سره ښه زېرې ونلري؛ پدې سره به یمن کې فرقه یزې شخړې زور واخلي او یمن به په شمالي او جنوبي برخو دویش دډېر جدې ګواښ سره مخامخ شي.

دیادولو وړ ده چې دالقاعده او دیمن ددولت ترمنځ تر اوسه کوم لوی جنګ ندی رامنځته شوی او نه هم القاعده دیمن کوم ښار قبضه کړیدی خو بیا یې هم امریکا پدې تازه ورځو کې دالقاعده دمشرانو دسرونو قیمتونه اعلان کړل او هغه چا ته یې ۴۵ میلیونه ډالر انعام ورکولو ژمنه وکړه څوک چې دالقاعده دمشرانو په باره کې امریکا ته خبر ورکړي.

خو حوثیان چې دپلازمینې په شمول یې ۳ ستر ښارونه،وزارتونه او فوځي مرکزونه قبضه کړیدي امریکا او نور لویدیځ یې پرضد هیڅ نه کوي.

نو ځکه القاعده چې په جنوب کې دسني قبایلو دپراخ حمایت نه برخمنه ده ویلي یې دي چې حوثي باغیان دامریکا په حکم راوتلي او دهمدې امریکا دګټو لپاره جنګېږي او بس!

وروستي معلومات دادي چې حوثیانو زیاتره دولتي تاسیسات پرېښي اوخپلو سیموته ستانه شویدي خودې هېواد ته دتجزیې اوفرقه ییزو شخړو ستر خطر لاهم متوجې دی ؛راتلونکې کې به معلومه شي چې دولت یې په له منځه وړلو توانېږي او که نه ؟

# داولادونوظاهري اوباطني روزنه

شفيق الرحمان ع.ل



تنکي ماشومان دولسونو د راتلونکي معماران دي، کوچنیانو ته ښه سالمه روزنه ورکول، د سالمې او ځواکمنې ټولنې دبنسټ ایښودو معنی لري، ښه روزنه یې دغوره او مثالي ټولنې له جوړولو سره مرسته کوي، څنګه چې د ښه نهال نه، په راتلونکي کې د ښې ونې د لویدو تمه کېږي.

ماشومتوب کې دماشوم سالمه روزنه، له بلوغ وروسته دهغه په دیني او اخلاقي حالت ژور تاثیر لري، دماشو متوب دورې روزنه د کاڼي کرښې مثال لري، ددې برعکس هغه ماشوم چې په کوچنیوالي کې دهغه سهې روزنې ته پاملرنه ونشي، له بلوغ وروسته د هغه نه، دغوره شخص جوړیدو تمه انصاف ته نیږدې نده! بلکې هغه دبلوغ وروسته چې د کومو بدو کړنو مرتکب کېږي، له امله یې دهغه مور او پلار ګرم اوملامت دي ، چې هغوئ د پیله دهغه سهي روزنې اوښوونې ته پاملرنه نده کړې، هم داراز داولاد سهي روزنه دنیا کې دمور او پلار لپاره دنیک نامی باعث او په اخرت کې دهغوئ دکامیابۍ سبب کېږي، هر چې نافرمان اوبې تربیې اولاد دی، هغه دمور او پلار لپاره په دنیا کې دبدنامی باعث اوپه اخرت کې دهغوئ درسوایي سبب کیږي.

د" تربیت" لفظ پراخ مفهوم لري، ددې لاندې دافرادو تربیت، دکورنیو تربیت او دټولنې تربیت هم راځي، بیا تر دې لاندې قسمونو کې نورې شمېره ډولونه راځي، چې دهغو ټولو اصل هدف اوغرض ،عمده، پاکېزه او سپیڅلې ټولنه جوړول دي، د اولاد روزنه یا تربیت دهمدې ډولونو یو مهم ډول اوښاخ دی.

**دتربیت ډولونه:**

تربیت دوه ډوله دی: ۱.... ظاهري تربیت، ۲.... باطني تربیت..... له ظاهري پلوه تربیت کې داولاد ظاهري شکل صورت، لباس، خوراک، څکاک،ناسته ولاړه، دهمزولو اوملګرو سره اړیکي اومصروفیتونه څارل راځي، تعلیمي کوایف یې له نظر تیرول، دبلوغ وروسته دهغه د معاشي زریعو کلک مراقبت کول، داټول هغه کارونه او اصول دي چې داولاد په ظاهري تربیت کې په کار راځي، هر چې باطني تربیت دی، هغه نه مراد، دهغه دعقیدې او اخلاقو اصلاح ته توجه کول دي، داولاد دواړه ډوله تربیت دمور او پلار مسؤلیت اوفریضه ده، دمور او پلار په زړه کې داولاد لپاره دمحبت او رحمت بې پایه فطري جذبه او احساس مندل کېږي،هم دا فطري جذبات او احساسات دماشومانو د ښې پالنې اوروزنې لور ته دهغه مور او پلار هڅوي، دمور او پلار په زړه کې چې کله داجذبات راسخ او شتون ولري! او ترڅنګ یې هغوئ د خپلو دیني مسؤلیتونو احساس هم ولري، بیا هغوئ ته په ښه توګه د خپلو فرایضو اومسؤلیتونو سر ته رسول اسان وي.

په عظیم الشان قرآن اونبوي احادیثو کې داولادونو دتربیت په باره کې څرګند ارشادات شتون لري دالله (جل جلاله) ارشاددی﴿ قوا انفسکم وأهلیکم ناراً وقو دهاالناس والحجارة﴾ التحریم: ۶)



خپل ځان، خپل اولاد، دهغه اورنه وژغورئ دکوم دسون توکي به انسانان او تيږې وي.

حضرت علي (رضي الله عنه) ددي ايت تشريح داسې کړي:

علموهم وأدبوهم

هغوئ( خپلو اولادونو ته) ته تعليم ور کړئ او ادب وروپيژنئ!

فقهاوو ليکلي چې په هر شخص دافرض دی، چې هغه خپلې ميرمنې او خپلو اولادونو ته دشرعي فرايضو ، دحلالو او حرامو په اړه علم ور وښيي اوپه هغوېې دعملي کولو کوښښ وکړي.

داولاد دتربيت اهميت له دغو احاديثونه هم ثابت دی، لکه د رسول الله (ﷺ) ارشاددی:

مانحل والد أفضل من ادب حسن.

هېڅ پلار خپل اولاد ته له دينه غوره تحفه نشي ور کولی، چې ور ته ښه ادب ور وښيي!

يعني ښه تربيت ور کول، او ور ته ښه ادب ښودل، داولادلپاره ښه بهترينه تحفه ده.

٢.... عن ابن عباس..... قالوا: يارسول الله قد علمنا ما حق الوالد فما حق الولد؟ قال: أن يحسن اسمه ويحسن أدبه.( سنن بيهقي)

حضرت ابن عباس (رضي الله عنه) نه روايت دی: چې صحابه وو عرض وکړ، يا رسول الله دمور او پلار حقوق خو مو و پيژندل، د اولاد حقوق څه دي؟ رسول الله(ﷺ) وفرمايل: هغه دادي چې ور ته نوم ښه کېږده، ور ته ښه روزنه ور کړه.

٣.... داډېره لويه ګناه ده چې انسان دڅه زيموار ګرځول شوی، هغه ضايع کړي او اولادته ښه روزنه اوپالنه ور نکړي.

داهم په ضايع کولو کې راځي ، چې يو پلار د خپلو ماشومانو دزده کړې نه بې پروا کيني، په سمه لارې د بيولو کوښښ ونکړي،ښکاره ده چې ددغسې ماشومانو عقايد او اخلاق بيا برباد شي،بل داسلام له نظره ناپوهې هيڅ عذر نده،دماشومانوپه سهې روزنه کې کوتاهې کوونکي ځان دقيامت په ورځ د حساب او کتابه نشي ژغورلی.

حضرت عبد الله بن عمر (رضي الله عنه) ارشاددی:

خپلو اولادونو ته ادب ورښيئ، دقيامت په ورځ له تاسو، ستاسي د اولا د و نو په باره کې پوښتنه کولی شي،ايا تاسي ادب ور ښودلی و؟ اودکوم علم، تعليم مو ور کړی و؟( شعب الايمان للبيهقی)

دماشومانو ستاينه:

ماشومان نرمې خېې ته ور ته دي، چې ترې هر ډول شکل جوړوي، جوړيدای شي، کله چې ماشوم ښه کار کوي، دهغه په ستايلو او تعريف کې دريغ ندی پکار ، ور ته د شابس ويلو ترڅنګ داسې تحفه او انعام ور کول ښه دي،په کوم چې هغه خوشاله کېږي او په راتلونکي کې ور ته دښه کار کولو ترغيب او جذبه ور کول پکار دي.

د تېروتنې په صورت کې دماشوم دپويولو حکيمانه اسلوب:

د هر غلط کار له امله دماشوم بيا، بيا پوېول، دهغه په طبعيت کې دغلط کار دځای نيولو مخنيوی کوي ، که په دې اړه غفلت وشي، دشک پر ته د ماشوم په مغزو کې به ناسم فکرونه ريښې وغځوي،خو مخکې، تر مخکې له بيخ نه دهغو ريبل پکار دي، له ماشومانو دخطاء راتلل، کومه نا

اشنا خبره نده،ولې دلويو خلکو نه هم تيروتنې کېږي،ماحول اوچاپيريال د ماشوم په روزنه زيات اغيزفرېباسي، ممکن دغلط ماحول په وجه يو ماشوم د غلطۍ مرتکب شي،خو په دې صورت کې هر هغه څه ته پام اړول پکاردي، دڅه له امله چې له هغه نه غلطۍ شوې؟ ورته توصيه او تهديد ښه دی،خو په روزنه کې منځلاريتوب او داعتدال لمن نيول ضرور ده،مربي بايد له دې خبروي، چې ماشوم ته نصيحت ګټه لري، که سزا؟ هر ځای چې سختې او نرمې څومره مناسب وه ،هغومره ګټه لري، ولې ډېره سختې او هم له حده وتلې نرمې د تاوان سبب کېږي، متنبي وايي:

فوضع الندى فى موضع السيف بالعلا مضر كوضع السيف فى موضع الندى.

کوم ځای چې د تورې چلولو ته اړتيا وه، هلته سخاوت هغومره تاوان رسوي، څومره چې دسخاوت په وخت کې توره چلول...

تربيت تدريجاً مناسب دی، په کومه غلطۍ سرزنښت بايدلاندې مراتبو ته په پام وي:

۱.... پوېول، ۲.... غوسه کول ۳.... دوهلو پرته بله سزا ټاکل ۴.... وهل، ۵.... اړيکې لغوه کول...يعنې دغلطۍ کولو په صورت کې دماشومانو تربيت په حکمت سره ګټور دی، که ماشوم په لومړي ځل غلطي وکړه، اول بايد په اشارو او کنايو پوی شي! خو ور ته دهغه بدفعل د يادولونه دې ډډه وشي ، که ماشوم بيا، بيا غلطي کوي او ترې لاس نه اخلي ، هغه ته په زړه کې داخبره کېنول پکاردي، که تا دويم ځل غلطي وکړه! در ته سزا به در کوم! ليکن غوسې ته په دې مرحله کې اړتيا نشته، په نصحيت، اونرمه لهجه دغلطۍ احساس ور کول دي.

ماشوم ته په محبت اونرمښت دتربيت او دهغه اصلاح کولو په اړه يوه واقعه د حضرت عمربن سلمه (رضي الله عنه) منقول ده، فرمايي: زه په کوچنيوالي کې درسول الله (ﷺ) په کفالت او روزنه کې وم، زمالاس به دخوراک په لوښي کې کله په يوه او کله په بل خوا، ته؛ ددې په ليدو رسول الله (ﷺ) وفرمايل: ياغلام سم الله! وكل بيمينک وكل ممايليک.... هلکه! د خوراک پيل دالله په نوم سره کوه، خواړه، په ښي لاس خوره! اوله خپلې مخې خوره!




په نرمه دنصيحت وروسته، که يو ماشوم بياهم دغلطۍ نه لاس نه اخلي،ور ته له خلکو جلا سرزنښت اوتهديد پکاردی، دهغه کار دبدوعواقبو احساس ور کول پکاردی،يعنې داسې مه کوه! که بياهم منع نشو، بيا ور ته لږ ډېره سزا پکارده! خو دتربيت دغه طريقه دنو عمرهلکانو لپاره ده، او بلوغ ته درسيدو وروسته دتربيت طرز اوطريقې جلادي، که په نصيحت نشو، ترڅو چې له بدو لاس په سر شوی نه وي، ترهغه وخته ورسره راشه درشه او تعلق پريک کول دي،داکار شرعاً جواز لري،له څو تنو صحابه وو(رضي الله عنهم) نه داعمل ثابت دی،دحضرت عبد الله بن مغفل(رضي الله عنه) يو خپل چې بلوغ ته نه رسېدلی،هغه به کاڼي ويشتل،عبد الله (رضي الله عنه) منع کړ اوهغه ته يې وفرمايل: رسول الله (ﷺ) ددې نه منع فرمايلي:"انهالاتصيد صيداًپه دې ويشتلو هيڅ ښکار کېږي نه، هغه منع نشو،نو په غوسه يې ور ته وويل: رسول الله (ﷺ) ددېنه منع کړي او ته منع نشوې ؟زه نور له تا سره خبرې نکوم ، هم داشان حضرت عبد الله بن عمر (رضي الله عنه) دخپل ځوی (بلال) سره په دې وجه چې هغه د يو حديث په مقابل کې خپله رايه وړاندې کړه ، خپل تعلق پريک کړ اوتر مرګه پورې هغه سره يې خبرې ونکړې.

ماشونو ته دتهديدور کولو اوو هلو حدود:



ماشومانو ته دتربیت په اراده، دمور، پلار یا استاد له لوري معمولي او نرم وهل نه یوائې روادي، بلکې کله نه کله ضرور هم دي، خو په دې اړه دافراط اوتفریط څخه ځان ساتل هم ضروردي، دغوسې حالت کې بې واکه کېدل، له حد نه تجاوز کول، دماشوم زیات وهل، یا یومخ دماشومانو وهلو ته غلط ویل، دواړه سم ندي، لومړی صورت افراط دی، دویم تفریط دی، داعتدال لاره هغه ده کومه چې رسول الله (ﷺ) په حدیث کې ښودلې: خپلو اولادونو ته په لمانځه حکم کوئ، کله چې هغوئ اووه کلنی ته ورسي! او دلمونځ په نه کولو یې ووهئ کله چې لس کلنی ته ورسي (مشکوة)

له دي پور ته حدیث نه، په مناسب او دضرورت په وخت کې دوهلو اجازت معلومېږي.

په وهلو کې ددې خبرې خیال ساتل پکاردي، چې له حد تجاوز رانشي، په بدن یې دوهلو نښې جوړې نشي، هم داراز دغوسې حالت کې له وهلو ډډه غوره ده، وروسته چې کله غوسه سړه شي، بیا دمصنوعي غوسې په ښودو باید ووهل شي، ولې د طبعي غوسې په وخت کې د حد نه دتجاوز اندیښنه کیدای شي، اوپه مصنوعې غوسه کې بیا دا خطر نه وي، مقصد هم ترلاسه شي اوله حد نه تجاوز هم نه راځي.

**هلکانو ته پر نجونو ترجیح ورکول ګناه ده**

اولاد دالله (جل جلاله) ګرانبیه نعمت او تحفه ده، که ځوی وي، که لور، داسلامي لارښوونوله مخي په ماشومانو د رحم اوشفقت په معامله کې دلور او ځوی توپیر نشته، کوم مور او پلار چې دځوی په پرتله د لور سره امتیازي رویه کوي، هغوئ دجاهلیت په پخوانی ناروغی مبتلی دي، دغه ډول سوچ او عمل له دین سره هیڅ تړاونلري، بلکې له دیني پلوه، په باب یې سخت وعیدونه راغلي دي، دلوښو کم ګڼونکي په حقیقت کې دالله (جل جلاله) په پریکړه نا خوښه دي، دغسي سړی باید پوی شي، که دی له ځان سره ټوله دنیا ملګرې کړې دالله تعالی په دغه پریکړه کې تغیر نشي راتلی، دا په حقیقت کې دجاهلیت کرکجن او فرسوده سوچ دی، چې دختسا کولو لپاره یې رحمة للعالمین (ﷺ) بیا، بیا یې پلرونو ،میندو او روزونکو ته دښه سلوک او دهغوئ داړتیاوو دپوره کولو حکم کړی دی.

**داولادونو ترمنځ مساوات کول**

ابوداود شریف کې دحضرت نعمان بن بشیر (رضي الله عنه) حدیث دی

قال رسول الله (ﷺ): اعدلوا بین أبنائکم اعدلوا بین أبنائکم اعدلوا بین أبنائکم. (ابوداود ۲ټوک ۱۴۴مخ)

رسول الله (ﷺ) فرمایلي: دخپلو اولادونو ترمنځ مساوات (برابروالی) کوئ، دخپلو اولادونو ترمنځ مساوات کوئ، دخپلو اولادونو ترمنځ مساوات کوئ!

مطلب دادې دظاهري تقسیم په اعتبار دټولو اولادونو ترمنځ مساوات پکاردی، ولې که برابروالی لحاظ نشي، داولادونو زړونه به مات شي، هو! په فطري توګه د کوم ځوی یا کومې لور سره زړه کې زیات محبت لرل، باک نه لري، په دې شرط چې په څرګنده اظهار ونکړي اوټول یوشان ګڼي، په حدیث کې درې ځله مکرر تاکید ددې په وجوب دلالت کوي، یعني داولاد ترمنځ مساوات کول واجب دي، او ټول برابر نه ګڼل په ظلم کې شماردی، داسې نه کول په اولاد کې دکمترۍ احساس او باغیانه سوچ زیږوي، دکوم چې بیا وروسته ډېر بد نتایج مخې ته راځي، الله تعالی دې ټولو مسلمانو پلرونو اومیندو ته دخپلو اولادونو په اړه د مسولیت په ښه توګه دسرته رسولو توفیق ورکړي. آمین

# صلح در بستر معامله‌گری‌های حکومت توپکمار

دکتور م، عثمان تره کی نویسنده و استاد پوهنتون

حوادث ناگوار سیزده سال اخیر را می‌توان چنین خلاصه کرد:




»اشغال افغانستان توسط قوای خارجی بدنبال استفاده افزاری از مبارزه ضد تروریزم و افراطیت مذهبی. بهره‌برداری از داعیه دموکراسی، حقوق بشر و حقوق زن به قصد انحراف ذهنیت عامه از زیاده‌روی‌ها در جنگ منفعت‌ها نه جنگ ارزش ها.«

نقض قانون اساسی بدنبال تشکیل حکومت به اصطلاح وحدت ملی بهترین مظهر سقوط ارزش‌ها به دامان آلوده سیاست است.

افغانستان طی سه دهه اخیر قربانی نیرنگ‌های آماتوران سیاسی شده است که در کمبود حمایت مردمی وسیله واره‌دار غصب قدرت سیاسی را در بیرون جغرافیای کشور جستوجو کرده‌اند. نزد این بازیگران سیاسی منشأ قدرت نه رای و بیعت مردم بلکه لشکر خارجی قیاس شده است. رسم احراز و حفظ قدرت بالواسطه کشورهای خارجی منبع اصلی فاجعه کنونی است که مسئولیت آن بدوش لاشخورانی است که از سیاست برداشت مکیاولستی دارند. کارمل، تره کی، نجیب، کرزی و اخیراً غنی و عبدالله ناخدایان کشتی ورشکسته‌یی اند که افغانستان نام دارد. کشتی در دریاچه خون شنا می کند. اگر خون بخشکد کشتی فرو می‌نشیند ... چنین است انتباهی که بازرگانان حریص خون و مصیبت برای توجیه مداخله خارجی، جنگ و تحمیل حاکمیت به مردم داده اند.

چنان تصور می‌شد که سقوط حکومت دوکتور نجیب درسی باشد برای سیاست بازانی که توسط قوت‌های مداخله‌گر ملزم به ایفای نقش‌های معینی در بازار آشفته سیاس یافغانستان اند. چنین نشد. هم‌زمان با تکرار تاریخ، اشتباهات تکرار گردید.

بلی تکرار تاریخ! احراز قدرت بدنبال مداخله خارجی. ظهور مقاومت در برابر مداخله بکمک کشورهای همسایه و نهایتاً استمرار جنگ. وقتی نتیجه مداخله خارجی در تشکیل حکومت به این وضاحت باشد، ناکامی مذاکره را قبل از آغاز می‌توان پیشبینی کرد. آنگاه دلیلی برای شروع مذاکره صلح با مخالفین مسلح آنطوریکه حکومت فعلی ادعا می کند، باقی نمی‌ماند. مگر آنکه معادله قوای جنگی به نفع حکومت دست نشانده به شکل رادیکال تغییر خورده باشد. درین صورت باز هم ضرورت مذاکره با دشمن شکست خورده منتفی می‌شود.

اصولاً مذاکره میان طرفین جنگ زمانی مطرح است که معادله قوای جنگی متوازن باشد. شدت حملات مخالفین طی ماه‌های اخیر (تلف شدن ۵ ونیم هزار پرسونل امنیتی در جریان ٦ ماه اخیر ) مقاومت مسلح را به یک طرف غیر قابل اجتناب صلح مطرح کرده است.

برای جلوگیری از تباهی بیشتر باید مذاکره با مخالفین مسلح که طی سالیان اخیر از حالت دفاعی به حالت تعرضی قرار گرفته اند، آغاز شود. مقاومت مسلح در گذشته مذاکره را با حکومت وقت نظر به دو دلیل رد کرده است:



ـ حالت اشغال و واقعیت اینکه حکومت، مدافع منافع کشور های مهاجم بود تا افغانستان.

ـ فقدان صلاحیت حکومت محصول مداخله خارجی در مسائل مربوط جنگ و صلح) تبادله اسرای جنگی، خروج قوا، استقرار پایگاه نظامی، اوربند . . .

آیا با تشکیل حکومت جدید که در واقع شعبه‌یی از سفارت امریکا است، موانع قبلی مذاکره با مقاومت مسلح رفع شده است؟ ابداً نه! اشکال دیگری چون امضای «بلا قید و شرط» موافقتنامه امنیتی، رخنه پُرقدرت گروهای جنگی مانند چاپ انداز دوستم در نظام، اولین رخنه مسیحیت در حریم سنتی ارگ توسط بی بی گل (از پشتاره استخبارات خداج خبر!) به‌موانع قبلی در مسیر مذاکره افزوده است.

ازین گذشته مذاکره مخالفین مسلح با حکومت کابل به مفهوم به رسمیت شناختن حکومت محصول اشغال و مهم تر از ان گذاشتن صحه به معاهده ننگین ستراتژیک است. این معاهده که در تنظیم و تصویب آن اشرف غنی سهم کلیدی دارد به قوای خارجی دست آزاد در ادامه قتل عام افغانان می‌بخشد و کنترول حکومت را بر واردات و صادرات از نوع انس و جنس امریکا و متحدین از میان می‌برد.

در نوامبر ۲۰۱۳ به وساطت حکومت قطر موافقتنامه‌یی میان نمایندگی مقاومت در دوحه و امریکا منعقد شد. موافقتنامه با رهایی «برگدال» سرباز اسیر امریکایی بدست طالبان و انتقال ۵ تن از زندانیان افغانی گوانتانامو به دوحه عملاً نافذ گردید. زندانیان افغانی تحت نظارت حکومت قطر از حقوق و آزادی‌های محدودی بهره‌مند شدند. قرار به این شد که در پایان سال جاری با ختم عملیات جنگی امریکا و خروج قسمی قوا در صورتیکه مذاکره صلح با مخالفین مسلح به نتیجه برسد، قیود وضع شده بر زندانیان رفع شود. اما به استناد فرمان» اوباما»، اعلام تمدید یک سال اضافی در ماموریت جنگی امریکا پروسه صلح را لااقل برای یک سال دیگر به تعویق انداخت. فرمان اوباما پیغام ستیزه گرانه و گستاخانه به مردم افغانستان دارد. به این معنی که: امریکا از طریق جنگ از حکومتی که «جان کیری» در افغانستان ساخته است، حمایت می کند. حکومت تحت‌الحمایه باید از منافع امریکا در افغانستان پاسبانی کند و پایگاه‌های نظامی این کشور را از گزند حوادث در امن نگه دارد. در عملیات نظامی پخپل سر امریکا در قرآ و قصبات کشور قیود وضع نکند. این حکومت که از جنگ سالاران شناخته شده چون چاپ انداز دوستم ترکیب شده ماموریت جنگی دارد.

پیام جنگی اوباما فتنه خوابیده را بیدار ساخت: دوستم که از برکت حمایت امریکا و متحدین از جنایات گذشته خود حساب نداده است، محتوای پیام را بدرستی درک و به خیز و جست آغاز کرد. وی که در زمان پیشروی طالبان در شمال کشور در سوراخ کوه «ترابزون» ترکیه فراری و پنهان شده بود نفس تازه یافت.

از آنچه گفتیم بر می آید که عطش خون آشامی نظامیان امریکا و متحدین پس از چارده سال جنگ، دادن هزاران کشته و صرف ملیاردها دالر فروکش نکرده است. جنگ بالای مردم افغانستان تحمیل شده است. وقتی دشمن حاضر به صلح نباشد، مسئولیت همه ویرانی‌ها و خونریزی‌های ناشی از عکس‌العمل مخالفین مسلح اعم از بم‌های انتحاری و جاده‌یی بدوش طرف ستیزه گر می‌افتد. شکل گیری بلاک‌های ستراتژیک جدید منطقوی مظهر گرایش کشور های منطقه در دفاع طویل المدت از داعیه مخالفین مسلح است. افغانستان در آستانه تبدیل شدن به مرکز تورید و صدور جنگ بی‌پایان قرار گرفته است که ویرانی آن نصیب ما و منفعتش از ان دیگران خواهد بود.

راه حل خروج از بن‌بست جنگ فرساینده، آنطوریکه بارها گفته شده تشکیل یک حکومت موقتی به موافقت مقاومت مسلح است. به همین منظور باید دفتر قطر فعال شود و اوربند فوری در صدر اجندای مذاکره قرار بگیرد. در صورتی می‌توان ادامه جنگ را از طرف قوای خارجی تا حدی توجیه کرد که مخالفین مسلح در تقابل با پروژه صلح قرار بگیرد. درین صورت قبل از دست بردن به سلاح باید جانب مسئول ادامه جنگ از طریق میدیا افشا شود. برای فعلاً مسئولیت جنگ تحمیلی را امریکا بدوش دارد.

اگر امریکا دست از حمایت جنایت کاران افغانی بردارد، در هر نوع عهد و پیمان بدمعاشی را کنار بگذارد و در تلافی اشتباهات گذشته صادقانه عمل کند، مردم افغانستان این عظمت اخلاقی را دارند که دست دوستی دشمن پشیمان شده خود را بفشارند.

# دويني فواري

استاد فضل ولي "ناګار"

ستادويني فوارې ته نه رسيږي
شفق دغې منارې ته نه رسيږي

فرعوني خوبونه ونيوۀ خپسو
دتالا کاله اسرې ته نه رسيږي

دجارح خنجر دې بله خوله پيداکړي
دقلم نوکې تبرې ته نه رسيږي

چې دحق منصوري غږته نه راخيژي
منبرونه غرغرې ته نه رسيږي

داپندونه او وعظونه بې نوښته
دتکبيريوې نارې ته نه رسيږي

سمندر چې يې ځپې وي خوبولې
دغره شوخې شرشرې ته نه رسيږي

د نمرود دظلم سره سره دوزخونه
دپتنګ خوږلن ايرې ته نه رسيږي

په جهاد کلابندي دوحشتګرو
سل طوافه دې دورې ته نه رسيږي

دتاريخ په مخ دچا دغرور ځلی
دجندو دې هديرې ته نه رسيږي

دشهيد ګلګون کرېوان دخدای حضورکې
جنتونه يې منظرې ته نه رسيږي

ځه زاهده! دابې درده دعاګانې
دماښام دسوز ښېرې ته نه رسيږي

په دفتردې که هم اوربل شي "ناګاره"!
دميوند يوې مسرې ته نه رسيږي

